د خوشحال ۳۸۶ تلین







# دستارنامه

د

# خوشحال ختک



پښتو ټولنه

پر له پسې لمبر (۱۸۲)




# دستار نامه

مصنف :

## خوشحال خټك

د پښتوټولني له خوا

شمېر : (۲۵۰۰)

۱۳۴۵ ش ، ه



په جهان د ځنګیالی دی دا دوه کاره
یا به وخوری ککری یا به کامران شی



ښه ځوانان به خپل هوډ پری نه ږدی له لاسه
که یې سر شی دخونی زمری ترزامه

## لو مړنــــی خبـرې

د۱۳٤٥ کال دسرطان پــه ۱٥ نیټهدپښتو ټولنې په غوښتنه ، دپوهنی دوزارت په مننه دپوهانودیوې‌غونډې‌له‌خوانــه داسی فیصله وشوه چــه دخوشحال‌دمړینی‌د(۲۸٦) کال‌نمانځنه‌دې په کابل کښی وشی .
وخت لږؤ اوکار ډیر ـ خومــونږ ملاوتړله اوپه دغه درو ندکار مولاس پورې کړ . دخوشحال‌دنمانځنی دوړځی‌دپاره ددستارنامی دچاپولو پریکړه‌هم وشوه . په لږو ورځو کښی له چاپی‌نسخی ځخه نقل شوه‌اوبیاپه ډیرزیار صحیح کړی شوه .چه دادی او س‌دپښتو ادب دتاریخ مینانوته وړاندې کیږي .
داهم باید ووایو چه دستارنامه په‌لومړی ځل دپیښور دموزیم دمهتمم ښاغلی عبدالشکور پــه اهتمام پــه۱۹٥۲ ع کال په پیښورکښی چاپ شوې ده .
مګر هر کله چه په دغه‌چاپ‌کښی‌دلیك دود داړولوخیال نه دی‌شوی‌او دځکو په پخوانی لیك دوددچاپ‌ډګرته را وتلی ده ، چه لوستنه یې دهرچا دپاره ګرانه ده، نوځکه مونیت‌وکړچه دلوستونکو د آسانی دپاره یــې په‌اوسنی رواجی‌لیك دود پــه‌ښــه‌روښانه تورو چاپ کړو چه خلــك ورځنی فایده واخلی .
دپیښور په چاپ کښی ډیرې غــلتی‌هم پاتی شو ې وې، چه هغه تــر ډیر ې اندازی پوری سمی اوصحیح‌کړی شوې .
مونږ ددې کتاب په آخــر کښی‌دښاغلی دوست محمد کامل دلغاتو په تحلیل سربیره ،ځینی پا تی لغا ت هــم وپلــټــل او ضرور ی معنی‌ګانی موورته پیداکړی .ددغې‌چاپی دستار نامی پــه سر کښې دوه کوچنی سر یزې لیکل شو ی دی،چه یوه دښاغلی سمنــدر پــه قلم او بله دښاغلی عبدالشکورپه قلم ده. مونږ په داسی حال کښی چه‌ددغو دواړو ښاغلو ددې لوی علمی او آدبی خــد مــت نما نــځــنه کوو ، غــواړو چــه له دغــو د و اړ وسریزو ځخه یو ځوخبری دلته‌راوړو.

ښاغلی سمندر وایی :

خوشحال سیاست دان ؤ،سیلا نیؤ ،جرنیل ؤ ، تورځن ؤ،دوخت په هرکوټ پیر، ځوړ اوستـغ پوه‌ؤ .عالم ، فاضل ،شا عر ،ادیب، حکیم فیلسوف ، منجم ، مصنف ، متقیا وپر هیز گار ؤ . څـه‌نـه ؤ ؟ هرڅه ؤ.

دخوشحال دستار نامه په‌حقیقت‌کښی یوه درنه پگړی ده، دعز ت، حرمت آوسرپتوب پگـړی ده . که‌څوك ددستار نامې په معیار دغه شل هنره اوشل خصلته نه‌لری نو دقام‌دمشری د دستار تـړ لو قـا بـل نه دی .

ښاغلی سمندر وایی چه‌دستا رنامه په (۱۰۷٦ ) ه کال کښی تالیف شوی‌ده .

ښاغلی عبدالشکور په‌خپله سریزه‌کښی لیکی :

« د پښتو دقلمی کتابو نو دښوونی‌په سلسله کښی ددستار نـا مـی یوه قلمی نسخه‌دخان‌بهادرمحمدرفیق‌خان له‌کتا بخانی څخه زمالا س ته

راغله اومایې دمحمد اعظم خان ا ومحمد سجاول خان په مالی مرسته‌په چاپولو پیل وکړ .دستار نـا مـه‌خوشحا ل‌په‌بندیخانه کښی لیکلی‌ده چه څه خاصه مطالعه یې نه و ه‌کړی .

خوشحال بابا که له‌یو ې خوالوی‌عالم‌ؤ، نوله بلی خوادهر فن استا د اودموسیقی له علم نه هم خبر ؤپه‌دی کتاب‌کښی‌ځینې‌داسی‌تاریخی‌خبرې شته چه سړی ورته حیرا ن پا تی‌شی .دکتاب جامعیت دهغـه د لـو ړ شخصیت ثبوت دی .»

له دې‌یادو نوڅخه‌ددستار نامی‌اهمیت‌په‌ښه‌شان څر گندیږی .مو نږ په‌دې خبره ډیر خوشحال یوچه دغه دروندائر په لړو خت کښی په‌ښه چا پ دخپرو نی میدان ته راووت .امید دی‌چه ټو ل پښتانه به ورځنی پوره گټه واخلی .

**رشتین**

**دپښتو ټولنی مشر**

**دزمری ۲۰ــ۱۳٤٥**

# بسم الله الرحمن الرحيم

حمدو ثنای ایـزد دا دار آسمان پروردگار بی زنو فرزند لامکان
عرش آفریدولوحو قلم راونه‌فلك اندر حساب او همه ذرات تاسمك
آدم زخاك تیره ازویافته وجـود خیل‌ملك به‌پیش‌وی آورده‌درسجود
گنجینهٔ محبت‌و گنجینـهٔ و داد اندر درون سینهٔ این خاکیان‌نهاد
پیغمبران پاك سرشت آفرید او واندر میان جمله محمد ستوده‌خو
پیغمبران ستاره و احمدچوماهتاب یاران احمد از همه بگزیده‌کامیاب
بوبکر هست‌و عمرو عثمان‌مرتضی ایشان میان جملـهٔ اصحاب مقتدا
در آل احمد از همه بهتر دوازده مائیم خاك پای کف هـر دوازده

مذهب‌چهارو چار امامند درجهان
مائیم این عقیده واین‌حمدواین‌بیان

پس د خدای د حمدو د ثنا درود په مصطفی او دده په آل او په اصحاب او په جمیع اهل هداو زمرهٔاتقیا ــ وایم زه پیرو دنفس و دهوا، محبوس د عنا ، گرفتار ددام بلا ،بانی ددې انشا ، مولف ددې املاچه باعث ددې تصنیف دی دا :

**بیت :**

چــه دستار تــړی هــزار دی ددستار سړی پــه شمار دی

دابیت په فقرا نامه (۱) کښې‌وارد شوی دی په طریق دواردات ، دوه بحره دوه قافیه لری ذوالقافیتین‌واقع شوی دی ، تفسیر وتفصیل‌ډېر لری ــ په خاطر فاتر ورسېدل چــه‌یوه موجزه مختصره رساله پښتوکوم انشأ ؛ چه عبارت یې روان وی ،قریب الفهم وی .

« دستار نامه نام کړم » هرچه‌معنی ددې بیت دی ؛ پاره پکښې‌درج کړم ــ خپل فکر په دا مشغله کښې‌ئه خو خرڅ کوم ــ چه هم می په‌دا فکر کښې بالفعل دلگیری پرې دفع‌وی ــ هم په دا التیام کښې گوندی دچا نفع وی ، په دا سبب مــی داعزیمت مصمم کړ ــ ددستار په سر کول چه تعلق په قابلیت لری شرایطې ډېر دی ، تر حساب تر شماره تېر دی ، واړه موقوف په قابلیت‌دی‌د قابلیت اسبابونه هم بلا احصا او بلا انتهــا دی ــ لکــه هنرونــه اوخصلتونه چه په تحصیل او په‌تدخیل یې سړی قابل باله شی ، په عدم‌او په خلاف یې ناقابل باله شی . په واړو کښې ما شل هنرونه ، شل‌خصلتونه اختیار کړل ؛ چه په دا

---

(۱) په چاپی نسخه کښې فقرانامه لوستل کېږی، مگر دخوشحال مشهور اثر فراقنامه ده .

رساله کښې راوړم ، که دا هنرونه‌خصلتونه چا ونیول قابل به باله شی د کتاب په مقدمه کښې به مفصـــل‌یادشی ، بیان به یې په خپل خپـل ځای کېږی . که سړی په حلیه دقابلیت متحلی شی ، دا استعـداد حاصل کا ، ددستار تړلو حق به په‌ځای کا او که نه دا هومره هم‌پکښې نه‌وی ، د دستار حق په ځای نه‌شوتردا هسی دستار ځادر به دی درسم ددستار څه حال نه وی .

**بیت :**

یابروهمچون‌زنان‌رنگی‌وبوی‌پیش‌گیر      یاچومردان‌اندرآی‌وگوی‌درمیدان‌فگن

درست کتاب په مقدمه ، پـه‌دوه باب ، په یوه خاتمه ترتیب‌شوی دی . په مقدمه کښې ذکر ددستار اوجوهر ذاتی چه مبده د قابـلیت ده فهرست د هنر و نو د خصلتونو .اول باب د هنرونو مشتمل په شل هنره ـ دویم د خصلتونو مشحون په‌شل خصلته ـخاتمه دحماقت‌علامتونه والله ولی‌التوفیق .

مقدمه د کتاب مقرره پـه دوه‌فصله ـ د اول فصل ذکر د دستار او ددستار د قابـلیت ـ دوم فصل‌مذکور د ولایت او اسباب سیاست او ریاست ـ هنرونه خصلتونه پـه‌طریق د فهرست او بیان دقابلیت.

**فصل اول ددستار په حقیقت**

خبر شه چه دستار په سر کول‌دښیوې او د نمای دپاره نـه دی . دستار د مرد شرم او عـزت دی ـتمامی شرم د مرد په دستار کښې دی ـ هرچه په حکم د حدیث ددستاردباب ما څه لیدلی دی هغه به هـم درته ووایم . ولی په عرف په عادت‌کښې هم نظر وکړه چه هر کله چه بادشاه یا امیر په ابتدا په تخت یاپه‌مسند د لویی کښېنی د باد شاه په سر تاج‌دامیر په‌سردستار کښېښودشی‌هرچه قابل او لایق دی دا کار په هغه پسنده په نا قابل پسنده نه‌شی‌هرچه په اتفاق دستار د هغه په سر کښېږدی ، هغه اطاعت اختیار کا ،ددستار شرم په‌دواړه لوریه‌لازم‌شی، اول په هغو چه دستار د هغه شخص‌په سر کښېږدی بیا په هغه چه‌دستار د لویی په سر کا د بل پـه ځـای‌کښینی . که قابل وی ثنا تعریف یې شی که ناقابل وی پورې ریشخندکېږی ـ پس ددستار کار سهل او آسان نه دی .

د دستار د تړلو شرم منحصرد ملوکانو دی چه دستار تړل هـم ددوی دی ـ پس اسباب د قابلیت‌په دوی کښې موجود دی او که نه ددستار تړل به پرې عیب عار وی .تر اسلام پخوا د دستار وضـع له بادشاهانو شوې ده ـ دستار به نورچانه په سر کاوه بې له ملو کانو یا

به هغو تاړه چه ملو کانو بــه وروباخښنه ، که نه قدرت دنور چانهؤ چه دستار به یې سر تاړه . شمله‌به ددستار هغه پرېښووه‌چه‌مړ نی به‌ؤ نمایان توره به یې وهله . د بدر په‌جنګ کښې ددستار شمله په مومنانو حکم شوه ــ شملــه ددستار دهغــه‌جنګ را په هیسې سنت مؤکدشوه، نه یونمونځ په شمله‌نه ډېر لمونځونه‌بې شملې توره چه چاړ ددستار تر کومه لاړه ــ د شملې دېرې ښو پــه‌باب حدیث نبوی په دا شان ناطق دی چه په جنګ د بدر واړه اهــل‌اسلام تیره سو دیار لس کسه وو ، د هجرت په دریم کال د بدر جنګؤ؛د همه خلقو افضل هم هغه اصحاب دی ــ پنځه زره ملایکې په ابلق‌اسونوسورې په مددد مومنانو راغلی وې واړو سپین دستارونه شملې پرېښې‌په دا باب دی : هذا یمددکم ربکـم بخمسة الاف من الملئکة مسومین ه ای معلمین عما مهم بان ارخوا اذنابها بین‌اکتافهم ــ ملایکو ځکه داعلامتونه‌ددستارو نو دشملو وکړل چه بله اصحاب دې هم د جنګ په ورځ داروش واخلی ــ په ځینو روایتو نو درسالت پناه درې دستاره یاد شوی‌دی .

یو اتلس ګزی ، شمــله یــې‌نیم ګز شر عی .
دویم‌دوازده‌ګزی. شمله‌یې‌یوګزهغه د جنګ ده .
دریم شپاړس ګزی ، هغه به یې‌په‌اختر‌په‌جمعه په‌سرتاړه ــ ددستار تړل په ولاړ بویه . درود دې لــولی‌دستار دې تړی .

حدیث دی : « لیس منا من‌تشبه‌بغیرنا » هم په دین کښې هم په‌آئین کښې‌ددستار کارترداډېر ډېری‌دی‌چه‌تحریر وتقریرشو. لکه‌حق‌ددستاردی هغه هسی په ځای کول مشکل دی‌اما په حدیث نبوی واضح دی چه رسالت پناه فرمایلی دی چه ما په‌امت کښې به لکه‌ابابکر صدیق(رض) هسی سړی پیدا کېږی ترقیات‌پوری‌شك نشته چه دا امت مرحوم به په هیڅ وخت د ښو مردانو خالی نه وی.په هره زمانه کښــې به امیــران ، عالمان ، درویشان پیدا کېږی ، چه‌قابلیت به ددین ددستار لری .

لکه حق ددې دستاروؤ خلفای‌اربعه په ځای کړېؤ . چه په ولایت ظاهری وباطنی کښې یې تصرف ؤمامور په دا سیاست وو .

بیا هغه امیران او سلاطین چه‌ددوی په سیرت وو ، یا دی یا به شی . هرچه مشایخان او عالمان‌دی‌هغه مامور دی په ولایت باطن لکه سیاست و تهذیب اخلاق باطنی ــهرچه امیران او بادشاهان دی هغه مامور دی په سیاست ظاهری لکــه‌بندو بست و انتظام ملك و مهام

هرچه ظاهری او باطنی دواړه لری‌هغه په سیرت دی د خلفای اربعه رضوان‌الله علیهم اجمعین .

لکه په خلفای بنی امیه کښې‌عمر عبدالعزیز ، په بنی عباس کښې هارون رشید ، په آل رسول کښې‌دوازده امام چه تمام حق به دوی ددستار په ځایوی ـ امام مهدی به‌وی‌چه حق او باطل به سره جدا کا ـ د اسلام په باد شاهانو کښې هم په‌حینو طبقو کښې‌ښه ځوانان تیرشوی دی په سامانیو کښې سلطان سنجر (۱) ماضی ، په غزنویو کښې سلطان محمود سبکتکین ، په هند کښې هم یو څو ښه‌ځوانان تیرشوی دی ، سلطان سکندر لودی ، بابرمغل لکه چه یاد شول .
په اسلام کښې به څو داهسی‌سلاطین او امیران تیروی ، ترقیامته به پیدا کیږی چه رواج ددین متین‌محمدی پری‌کیږی . سلطان السلاطین وی که نایب د سلطان السلاطین وی‌که ځان لره سلطان او محتشم دخپل د یار وی چه دا حال پکښې وی هغه‌دواړه قابل ددې دستار دی .

احوال به یې په خپل محل‌ووایه شی . که کار یې په خلاف وی که بادشاه ددرست جهان وی په داحساب داخل نه دی د دستار لایقت ورڅخه نشته . بادشاهان‌ظلل‌الله‌دی،خلیفه سایه د سبحان دی . چه مخالف دی خطا دروغ هغه خلیفه‌د شیطان دی ـ دا می چه درته‌شمار کړل ، څه هسی نه چه خو په تخت‌کښېنی سلطنت دولت یې ډیر حاصل شی .

هم هغه سړی لایق ددې دستاردی . بادشاه وی که امراوی که سردار د خپل قوم قبیلې وی چه‌لایقت او قابلیت یې حاصل کړی دی هغه واړه سزاوار ددستار دی .واړه اصحاب لایق ددې دستار وو د خالد بن ولید په کور کښې هیڅ‌نه‌وو ، نه په تخت باندی ناست‌دی؛ خلیفه د عهد امیرالمومنین ابو بکرصدیق (رض) و ، دی دده په امر سردار دروم د لښکرؤ ، بهترافضل‌تر سنجر تر محمود ؤ ، امیر چوپان په خراسان کښې چه امرا بومیه دخپل ولایت ؤ ، چه استعداد قابلیت پکښې ددې دستار ؤ ، ددین په کاراستوار ؤ ، بهتر تر چنگیز خان ؤ ډیر ځوانان ځان لره ناست دی چه‌قابلیت او استعداد حاصل‌لری ، که په تخت ناست وای به به تر سنجروتر محمود ؤ . اما د تخت نصیب نه لری .

---

(۱) په دغه عبارت کښې هم یوڅه‌غلتی شته ولی چه سلطان سنجر سامانی نه دی بلکی سلجوقی دی .(٥٢٤ ـ هـ )

**بیت :**

بخت‌و دولت به کار دانی نیست جـز به تئـیـد آسمانـی نیست

دوی هم هسی پخپل استعداداو قابلیت پوهېږی چه موږ قابـل دسلطنت یو اما د ایمان سره (۱) چه کا . لکه توره چه په صندوق کښې فولادی د ښه استاذ د لاسه روغـه کړی باڼ کړي پرته وی چه څښتن‌يې دصندوقه نه وباسی توره چه کا ،بلکه هغه ښه توره ساتلی په‌صندوق کښې یوه بله کینه ترملاکړی (۲).

هرگاه چه اقتضا د قضا داووینی هغه چه قابل دی هم په هغه خپله بخره کښې بادشاهان د خپل‌وخت ناست دی ، هم هغه خپل‌فطرت او قابلیت ددوی بادشاهی وی .

**بیت :**

بادشاهی ذوق معـنی کـردنست نی بزورو ظلم دنیا خـوردنست

ما چه خلفای اربعه ، اصحاب‌و اما مان بنی امیه بنی عباس درته یادکړل مقصود می داعلی مرتبی‌ۇ .سنجر و محمود می چه درته یادکړل مطلب دوسط او ادنی څه هسی نه‌چه خو هم دا دوه تېر شوی دی . نه تېر شوی ډېر دی ، دامـی خـومقصود تمثیل ۇ ، په بنی امیه کښې یزید پلید هم تېر شوی دی ، مگرقابل او لایق ددې دستارۇ ، هرچه په اوصاف حمیده موصوف‌اواستعدادیې حاصل دی د دستار لایق هغه دی ډېر دنیا پرست په نام مسلمانان په‌عمل کافران د دنیا د بادشاهی‌دپاره خوار حیران مصاحب او امرایان ،هند وان او را فضیان او فاسقان او فاجران داهسی که ناست په تخت‌دی هم کم بخت دی ، لایقت يې‌ددين او د مردانو ددستار نشته . نوشیروان عادل چه آتش‌پرست‌ۇ په کمال صفت د عدالت آراسته ۇرسالت پناه په سبب د عدل ستایلی دی .

**مثنوی :**

پیغمبر(ص) که‌درعهد نوشیروان برخ گشت چشم‌و چراغ جـهان
بگفتا که از ظلم ازان ساده ام که در عهـد نوشیروان زاده ام
دی به لایق ددې دستار نه بولم که مومن مسلمان دی په جـهاد

(۱) دغه عبارت له چاپی نسخی‌نه کټ مټ نقل شو خو غالباً اصل يې داسی دی : ( اما داسمان سره‌څه کا )

(۲) کټ مټ نقل شو مگرښایی‌داسی وی ( یوه بل‌کمینه تر ملاکړي)

پهغــزا ولاړ دی ، د متأبــعتقابليت يې د سلطنت د قابليت سره جوړ دی هاله به لايق ددې دستارؤ .تا به اروېدلی وی چــه پښتانــه د کــوهستان ، راجګان د هندوستانچه ډېر نام و ناموس لری ، تهورو بسالت په افراط لری هر کله چه دابنای جنس غليم دلوری هزيمت بيا مومی ، شرم ورو رسېږی ، دستارله سره واچوی سر تور ګښېنی . وايې چه اوس زما څه دستار په سرکول دی . نه چيری می شرم پهځای شو ، انتقام می را نيو ، هاله بــهدستار په سر کړم .
پس په عرف په عادت هــم دامعلوم شول چه نام ناموس ، شرم ننګ هر څه چه شته واړه په دستارکښې دی ــ پس چه دا ثابت شول چه دستار دا هسی څيز دی چه ددين‌دنيا بزرکی لويی په ده کښېدهڅوك چه دستار تړی ددستار په حقيقتدې‌وپوهېږی ددستار حق دې وپېژنی. قابليت او لايقت دې حاصل کا . کهقابليت او لايقت يې حاصل نه کا ، دستار په سر کا ، برند کښېنــیداهسی دستار دستار بانه نه شی څه شو که زر زری منديل په سر کالويه شمله پرېږدی يا بادله څيره کړه وتړی داهسی دستارونه د مخنثانودکودکانو وی ، نه دمردانو. والسلام

## دويم فصل

دقابليت اواستعداد دخصلتونود هنرونو په طريق د فهرست چــه منحصر ددستار دقابليت دی .
ددستار لايقت موقوف په هغوخصلتونو هنرو نو دی . نقصان يې په عدم محصول کښې دی . هنرونهکسبونه ، فنونه ، حــر فتــونــه ، صنعتونه ، خصلتونه ، خويونه ډېردی تر شماره تېر دی ــ که په واړو پسی څوك زغلی عمر د نوح بويه چهپه تعليم يې حاصل کا اما څو چه په تحصيل د هغو قابل باله شی هغــههومره لازم لابد دی چه حاصل‌يې‌کا او که نه په عدم د هغو به قابل بالهنه شی ، ددستار لايق به وايه نهشی شل هنره شل خصلته چه اختــيارشوی دی په دوه باب کښې بهواضح شی .
اول پکښې هنر د ځان پېژنــدګلی دی .

**بيت :**

چون تو در نفس خود زبون‌باشی عارف کرد ګار چــون بــا شــی

بيا ورپسی هنر د علم دی چهکسب کمال باله شی ــ بيا ورپسی نور کسبونه فنونه حرفتونه وغيرهدا می چه ياد په هنر کړل مراد می دا دی چه هر چه له چانه زده کېږیاو په تعليم حاصلېږی ، يا هنر دی

یا کسب یا فن یا حرفت یا صنعت ،دواړه څبله مخلوط دی ــ هنر پــه کسب کښې کسب په هنر کښې فن‌هنر سره یو معنی ، صنعت حرفت همدا هسی .

پس په اصطلاح کښې د هنــرقرار ورکړ شو ، واړه هنرونه دی دا شل هنره می چه په واړو کښې‌منتخب‌کړل‌هم‌خپله خپله‌مرتبه‌لری‌لکه فرض ، واجب ، سنت ، مستحب چه‌اول پکښې یاددی هغه لکه فــرض ورپسی واجب ، ورپسی سنت پــه‌شل هنره کښې آخر هنر د نسب ، دنرد د شطرنج د تصویر تحقیق(۱)دی دا لکه مستحب .

په دا هنرو نو کښې نقص وکمال هم په مراتب د دوی دی. واړه شل هنره چه اختیار دی هم نــورهنرونه ډېر دی ، ولی واړه په منزله د نوافل دی که یې حاصل کا رشدیې زیاده پرې وشی او که نه نقص نه واقع کېږی اما په نه پوهه به‌یې‌نقص په قابلیت کښې واقــع شی . مثلا لکه هنر د تر صیع چه زرگرجواهر په زر کښې جوړوی دا لوی هنر دی .

که زده شی رشد یې زیادت‌شو او که نه نقصان واقع نه شو اما که پرې پوهه حاصل نه‌کا تمام‌نقص‌د ملوك دی .

چه د جواهرو ترصیع وقوف‌یې نه وی د قیمت وقوف به یې څه وی .

په دا شان هنر د آهن گری چه‌توره ، نیزه ، چاړه ، زغره چه آلات د محاربات دی تعلق په دوی لری که‌د آهن گری هنر یې زده زیاتی هنرو بلکه په کارو ، او که زده یې نه شونقص واقع نه شو .

اما که د توری دزغری د نیکی‌د بدی وقوف نه لری نقصان واقــع شو . لکه هنر د جولادی زده کول‌یې‌هنر دی که زده شی څه بدی که د ټوکی درخت وقوف‌یې نه وی‌قباحت،دا غستو په قــدر به یې څه پوهیږی د پېرو دو په حساب به‌یې څه‌رسېږی‌په دا شان ډېر هنرونه دی چه پــه نه زده کول نقص په قابلیت کښې‌نه‌واقع کېږی اما په بې وقوفی کښې یې نقص واقع کېږی . غرض چــه‌مرد هغه دی چه په هر کسب کښې داخل دی اوکه نه په دازوایدکسبونو کښې دی غشی رغول ، دستنی درز وهل ، بهله دوزی د زرگیر سازول دا خو دې زده وی ــ راغلم په تعداد په شماره د هنرونو دخصلتونودادی:

(۱) کټ مټ نقل شوخوښایی‌چه د تحقیق په ځای (دنقاش) وی .

## باب اول مشتمل په شل هنره

اول هنر د ځان د معرفت .
دویم د علم چه کسب کمال باله‌شی .
دریم هنر د خط چه لازم ملزوم‌د کسب کمال دی .
څلورم هنر د شعر چــه پیرود علم دی .
پنځم هنر د تیر اندازی دی .
شپږم هنر د آب بازی دی .
اووم هنر د اسپ تازی دی .
اتم هنر د ښکار دی .
نهم هنر د شجاعت دی .
لسم هنر د سخاوت دی .
یوولسم‌هنر دازدواج د معاشرت‌دی .
دولسم هنر د اولاد د تربیت‌دی .
دیار لسم هنر د تادیب خدم وحشم دی .
څوارلسم‌هنر داسباب معشیت‌دی .
پنځلسم هنر د زراعت ددهقانیت دی .
شپاړسم هنر د تجارت دی .
اولسم هنر د تــحقیق دنسب‌دی .
اتلسم هنر د علم موسیقی دی.
نولسم هنر د نردد شطرنــج‌دی .
شلم هنر د تصویر د نقاش‌دی .

## باب دویم د خصلتونو دی

اول ـ خصلت د مشورت .
دویم ـ خصلت د عزیمت .
دریم ـ خصلت د خا موشــی.
څلورم ـ خصلت د راستی .
پنځم ـ خصلت د شرم و حیا.
شپږم ـ خصلت د خلق نیکواو خلقت وخوشخویی .
اووم ـ خصلت د مروت .
اتم ـ خصلت د عفو او کــرم .
نهم ـ خصلت د تمیز .
لسم ـ خصلت د عدل د انصاف .
یوولسم ـ خصلت د توکل .

دیار لسم ـ خصلت د خوف‌ورجا .
خوارلسم ـ خصلت د ملك دانتظام .
پنځلسم ـ خصلت د همت .
شپاړسم ـ خصلت د حلم .
اولسم ـ خصلت د غیرت .
اتلسم ـ خصلت د حزم واحتیاط .
نولسم ـ خصلت د طاعت دورع .
شلم ـ خصلت د استغفار .
خصال حمیده ډیر دی ، کـه‌داهومره چه وکښل شول واړه‌ونیسی لکه سترګی چه د چا د سواد وشی‌نور هر کتاب پخپله لونـی پـه دا خصایل به هغه وفور خصلتونه هـم‌بیا مومی ـ نمړی په مقدار د خولې نښه وی که د مزری نمړی پیشووته‌روغه کړې دا عقل نه دی .

**قطعه :**

لکه خولـه هسی نـمړی لکه قـد هسـی جـا مـه
که کمېړی یا زیـاتـېـړی نـا پـوهـی ده دا هـمـه

تکلم‌الناس علی قدر عقو لهم.دا خصلتونه به هم په تفصیل هـم هسی‌وویل‌شی.چه‌څوك‌یې‌پوهه‌حاصله‌کاپه‌عمل‌دې وروتوانېړی دعام ورع د خاص فتوی (۱) وی چه عام یې‌طاعت‌ګڼی خاص ته معصیت وی ـ ترکی اس په نادار عراقی وی ، وبادشاه‌وته‌عراقی تر سهل ترکی بدتر وی ـ په فقیر شړی لکه اطلس ده په دولت‌منواطلس شړی وی ـ په دادوه باب پسی به خاتمه د کتاب وی په خپل‌خپل ځای به انشاالله تعالـی واړه وکښل شی .

## اول هنر د ځان د پیژندګلی

من عرف نفسه فقد عرف ربـه‌یعنی د هر چا چه د ځان شناخـت وشو پس په تحقیق چه هغو خپل‌پرور دګار وپېژاند .
معرفت ، شناخت ، پېژنـدون‌داواړه یو معنی لری .

**ابیات :**

که دې شناخـت وشـو د ځـان شناخـت دې وشو د سبحـان
که دې شناخت نشتـه د ځـان شناخت دې نـشتـه د سبحـان

(۱) په متن کښې فتوی ده‌مګرد تقوی کلمه ورسره ښه لګیږی .

شناخت د ځان په دوه رنګه‌دی ، یو په ظاهر بل په باطن ظاهردا
چه په ظاهر نعمتونه چه وتاته یـې‌درکړی دی نظر وکړې ـ چـه لـه
عدمه‌یې‌موجود کړې. نه‌وې، وشوی‌نیست وې ، هست شوې ، که ډېر
وایم کتاب اوږ دېږی داهومره زده‌کړه چه د نر ښځـی ترمیان چـه
مینه محبت کېږی ، مقصود دهغـه‌محبت واړه دادی چه مقصود ته یـې
دتولد د تناسل لار مسدود نه شی.داخراب جهان په دا محبت سره ودان
دی. که دغه‌محبت نه‌وی‌چه‌لکه‌محصل چه‌په‌چاتعیین‌وی‌په‌داهسی‌دخندا‌په‌کار
به څوك راضی شول چه شرم حیـایکباره له منځه واخلی ، دواړه لوریه
نر ښځه بې حجاب او بې پردې‌شی‌یـو دلاندی ورته پرېـوزی ، بل د
پاسه پر غېږ نیولې ښو زېږی . بیایوه قطره منی بې نمازه بدرنګی اوبه
یو ثاڅکی د مرد د آلت جـدا شی‌د ښځی ورحم وته پرېوزی ، دواړه
لوریه سره محظوظ شی . په رحـم‌کښې هغه نطفه ځای کا . پس لـه
څلوېښتو ورځو وینه بیا مضغه شی.غوښی اورګ ودلی استخوان‌پکښې
جوړ کا ، سر ، پښې ، لاس تمام‌وجود سترګی ، پوزه ، خوله ، غوږ
مغ ، وروځی باڼه درست یې سره‌مرتب کا ، لویوی یې تـر څـلورو
میاشتو پوری بیا روح پکښې ننـه‌باسی ـ غذایې هغه د حیض مرداری
وړنی کا ، چه تنو مند شی تر شپږمی‌میاشتی پوری قابل دزوولو کا ، په
نهم میاشت وزېږی هم په هغه لارچه‌هغه قطره څاڅکی ننه وتلی وی یو
هسی ځیز ورځنی را وباسی چه په‌حسن د ماهتاب سره برابری کا .
خو چه راووځی طلب د خوراك وکا.مور ورته تی ونیسی ، تی په هسی
شان په خوله ونیسی پر حواله شی،چه وایی کنه .

همېشه یې تی رودلی ؤ . د مورمینه‌تر هسی حده پر پیدا کا چه ورځـو
شپه ورته په سیخ شی ، ساتی یې‌لویوی یې خپل ځان خوری فزندپرور
دوی . تر هغه پورې چه دطعام پـه‌خوراك داخل شی د روټی دغوښو
وخوړل و ته ، هم په داوخت مصالح‌ددې کار ورکا . غاښ چه کلك ځیز
پر ژویی ، قوت قدرت چه تر حلـق‌یې کارته کړای شی ـ سبحـان‌الله
ترکومه به یې حساب کتاب کړم .

ته خولا سړی یې که مور ،پلار دې په ساتنه محنت مشقت کا
ګوندی ستا د ګتهنی یاد تورو دځینونورو چارو امید کا . لیوه ګان بازان
ګوره ، مزری شښهندان ګوره چه په‌خپل فرزند څو مینه تپاك لری دنورو
غوښی راوړی او خپلو فرزندانو ته‌یې‌ورکوی‌ساتی‌یې ـ خوچه لوی‌شی
نو تار په تار و بله درومی ـ مرغونه،مارونه ، ماهی وغیره تر مور تر ملخ

په خپل نتاج داحال لري . دامینه چه‌تر مینځ پرپوته واړه په قدرت او په حکمت دقادر پر کمال د حکیم علي‌الا طلاق چه وبله سر رشته دتوالدو تناسل د مخلو قات په ځایـوی داچه دي وارویدل د خروار مشت هم نه دي . تر دا پوری قیاس د نوروو کړه . نور آئینه په لاس واخله‌دخپل دیدار تماشا کوه چه څه گلرنـګ‌ښایسته څهره يې درکـړه . یو د سترګو نعمت وګوره که یوه سترګه‌دي ړنده شی جهان به دربانده‌ی‌تنګ تاریك شی .

که د درست جهان خزانې ستاپه لاس وی ، څوك پیدا شی درتـه ووایی چه ستا د سترګی علاج بـه‌وکړم چه روغه شی احتمال دی چه واړه خزانې به د هغې یوې سترګـی‌په رغولو ورکړې ــ داهومره ددنیا خزانې ستا دیوې سترګی بها شوې‌او تا ته يې داهسی سترګی بې منته وړیا در کړی پاسه يې په توروورځیوښایسته کړې .

بیا تور بانه چاپیر شپول شوه‌چه لاله ورایه خس و خاشاك زیـان ضرر ستا له ستر ګونه اړوی.یو دسترګو نعمت دادی چه څه خو می درته ووې ، د سترګو رغول چه‌څو پردې لري . واز دې ترې چاپیر په کونکونو کښې تور سپین پاسه‌کولکو نه ګلك د هډونو د ستر ګو د محافظت دپاږه . که هم د سترګوحقیقت چه په حکمت موندلې شوی که درته وایه شی تمام به نه شی.ظاهر باطن نعمتونه چه واړه دوجود دی تعریف به يې په دفترونو کښې‌ځای نه شی ، چه نمری په خولـه کړې لذت د خوږو د تر خو ترې‌وګوره چه پسویی بیا مومی چه تر حلق يې کښته کړې تر لړمانه ورشی‌بیا تر رودې ورشی .

ځای په ځای چه ستا صورت‌وته قوت رسوی . تر دماغ تراحشا چه د طعام بخار رسېږی چېرته وازده شی چېرته وینه شی چېرته منی شی هغه فهم وکړه خبر دار شـه‌بیا په څه رنګ تر دوه لارو هغـه کثافات‌وباسی اوبه د مثانې په لار ، نجاست د دبر تر لار که دا کثافات ونباسی ځـای پـه ځـای پـا تـه‌شی ستا به څه حال وی او که یك لخته يې پرانزی هاله به دې څـه‌احوال وی ؟

پس دا دواړه لارې ستا د ژوندپاره په خپل حکمت سره کله روانی کا کله يې بند کا .

**مثنوی :**

گر به بندد چنانکـه نـکشایـد گر دل از عمر بـر کند-شایـد
ورکشاید چنانکـه نتـوان بست گـو بشو از حیات دنـیا دست

چه خاندی چه ژاړی چه هواهوس دا نعمتونه کوره چه جاه‌وجلال درکا، ملك و اموال درکا چه اغوندي‌چه تېزي چه پر کښېني‌چه‌ښی عورت زويه ښې لوڼه، خدم حشم در کا .داګوره ددې‌نعمتونو دشمارو دیادول وکښل د توان کار نشته چه په دابه‌تا څوك پوهوی مګر په خپل کرم ستا سترګی بینا کا چه نتـداري ددې‌نعمتونو کړې ، هرزمان شکر وکاږې شکر وکښل ستا دا دی چه که ترمشرق تر مغرب واړه ملك دولت و تاته درکا ته ووايې چه الحمدلله‌رب‌العلمين په‌داهومره‌کلمه‌واړه‌شکر په ځای‌نه‌شی ــ نه‌تانه خوهم داهومره‌غواړی‌چه ته يې وپيژنې ، ثنايې ووايې ، دا نمونځ روژه نور طاعت‌عبادت چه په تا فرض شه هم په داسبب چه ما نعمتونه د ظاهر دباطن‌وتاته در کړل تا مې حمدو ثنا ووې، له تا راضی شوم . عبادت مې په دافرض کړ ، که په د احمد ثنا رښتينی يې زما عبادت کوه چه زما خاص‌بنده‌شې ، ددنيا نعمتونه فانی د آخرت باقی . نعمتونه د جنت د حورروقصورتر هر څه به ديدار به درکړم . که په خوله مې حمدو ثنا وايې طاعت‌عبادت مې نه په ځايوی ، دروغژن‌يې طاغی يې ، عاصی يې دنعمتونو قدرمی نه لرې نامرد نسناس مه شه وارخطا او ناسپاس مه شه .

داهومره نعمتونه يې چه درکړی يا يې وعده کړی ده تا نه خو امرو نهی غواړی .

**مصراع :**

از امر خدا مگذر از نهی‌بپرهيز

حلال حلال ګڼه حرام حرام‌شماره ، پنځه وخته نمونځ چه‌فريضه دی مه يې قضا کوه ــ زکوة د مال‌ورکوه ، دېرش روژې د رمضان د مياشتی لره ــ که لار نه خوفه لـه‌خطره پاکه وی ــ زادو را حله لرې حج لره روان شه ! والسلام علی من‌التبع‌الهدای.

## دويم هنر د علم چه کسب کمال باله شی

علم په لغت کښې زده کولوته‌وايی هر چه وی ، اوس په اصطلاح کښې تحصيل د علم عربی ، فارسی‌وغيره وته چه شهرت د څورلس‌علوم لری علم وايی . هرچه‌داعلوم تحصيل کا واړه ولولی هغه دانشمند ، فقيه فاضل عالم ملا باله شی ــ هغه چه‌پخپله زمانه کښې په دا علوم کښې د ځواب څوك نه لری هغه عالم‌العلماباله شی . مخدوم‌الملك باله شی.

علم دا دالهي دي فيض نامتناهي ددوارو جهانو نو لويي بزرگي پـه علم كښې ده ، د خداى شناخت چه سر مايه دواړه سعادت دى په علم كښې دى .

**بيت :**

چو شمع از پى علم بايد گداخت كه بى علم نتوان خدارا شناخت

د پيغمبرانو متابعت په علـم كښې دى هرچه علم بيا مومى ميراث بيا مومى د پيغامبرانو . العلماء ورثـةالانبياء يعنى پـه ځاى كښېنى د پيغمبرانو دا شرف بزرگى د علم فكر كړي بويه چه تر كومه حده ده . چه د علم څښتن ځا نشين دپيغمبرانوشى دا خو ددين لويى ده . ددنيـا لويى هم په علم كښې ده . كه نداف اوجولاوى چه دانشمندشى بادشاهان يې تعظيم او تكريم كا ، عالم واړه دده خدمت كاو شي .

كه كيميا ده كه سيميا ده كـه ريميا كه نجوم دى كه طب دى كـه حكمت دى داواړه په علم كښې دى. څورلس علوم دانشمندانو د تحصيل شمارلى دى . اما تر دا ډېر دى ،دواړو په كار خداى خبر دار دى ، د موسىٰ (ع) د خضر (ع) شاگردى استادى خو به دې اروېدلى وى ، چه د علم لدنى څښتن دى هغو ته إكثرمعلوم دى . ظاهرى علوم چه پـه تحصيل سره ممكن چه څـوك يـې مومى په تحفةالغياثى كتاب كښـې تر څلوېښتو پورى شمارلى دى .

دا خو د ظاهرى علم حال دى.دباطنى علم چه د مشايخانو دى لكه علم ظاهرى په تحصيل مونده شـى هم علم باطنى په تحصيل په زده كول مونده شي ، د باطنى علم څښتن پيرشيخ ، مرشد ، خليفه مقتدا امـام باله شي ـ لكه داعلم ظاهرى چه په درجه درجه پايه په پايه زده كېږى هسى علم باطنى په تزكيه په تصفيه پـه تلقين په ارشاد زده كېږى .

چه علم ظاهرى وكا لارې وباطنى وته هم وجوړېږى . غرض چه ددواړو كونو مراد مقصود كامرانى كاميابى په علم كښې ده ـ ذره حبه له علم بيرونه نه ده ـ خداى دې توفيق وهرچاته وركا چه تمام عمر په تحصيل دعلم صرف كا ـ او كه نه هومره خو دې وى چه محروم پاتى نه شى چه دسړيو له حسابه ووځى دخارويوپه حساب باله شى ـ عام كالانعام شى بل اضل ـ د قابليت له دايرې نه بيرون پريوزى كه بادشاه زاده وى چه په نقصان كښې پاتى شى ددين ددنيا له دولت نااميـد شى . كـه روستا زاده وى چه دعلم له حكمت يې بخره وشى ددين ددنيا سعـادت ، لويى بزرگى وگټى .

**مثنوی :**

وقتی افتاد فتنـۀ در شام　　هر کسی گو شۀ فرا رفتند
پسران وزیـر ناقص عقـل　　بـگدایی بـروستا رفتـند
روستا زا دگان دانشمنـد　　بوزیری بپاد شاه رفتـند

ددین ددنیا دولت دقابل دی ناقابل ځنی محروم دی .

**فرد :**

تو قابل آی که ستارۀ سعادتمند زبهرمردم . قابل‌همیشه‌درسیر است

هغه چه وایی چـه د هر چـامدار په بخت دی . السعید فی بطن امه والشقی فی بطن امه په داکښې‌هیڅ شك نشته اما تفاوت په پو هه کښې دی . دانا بویه چه په دار موزوپوهېږی . رسالت پناه دا ویـل واصحاب وته کړی وو اصحاب په‌عمل کښې سست شول بیا به چه وخت د نمانځه د عمل شو نا قراربه شول آبدست نمونځ به يې‌اداكړ پیغامبر لره راغلل التماس به یـې‌وکړ چه یا رسول‌الله تا فرمایلی وو چه د بهشت موندل د هرچه موندل‌په عمل نه دی په بخت دی موږ په عمل کښې سست شو ، ولی چـه‌وخت د عمل راشی ناقرار شوهرگاه چه عمل وکړوهاله قرارشو . رسالت‌پناه ورته ووې چه همدغه علامـت دبخت دی . هرچه له ازله بختور دی‌له موره بختور زوولی دی ؛ د هغو فهم به په ښه وی ، هرچه بدبخت‌دی فهم به يې په بدوی . هر څوك چه علم قابلیت حاصل کا . همدغه‌نخښه د بخت د سعادت ده ، چه په خلاف وی نخښه د بدبختی د نکبت‌ده ، هر چېرته بخت تابع د هنر دی هیڅ هنرمند چا ذلیل لیدلی نه دی‌هیڅ بې هنره چا عزیز لیدلی نه دی.

**فـرد**

وجود مردم دا نا بشان زر طلااست بهر کجا که رود قدروقیمتش‌دانند

بې هنر که هرڅو بخت په‌سرگرزوی اعتبار به لری .

**فـرد**

که‌ناستی دناقابل په‌سرپرپاس‌وی　په‌معنی‌کښې‌خندان‌خان‌شاه‌عباس‌دی

**قطعه**

چه هنر د بزرگۍ در ځخه نه وي
طالع څه کاتا په سر واخلي مګر
چه په آس کښې څه هنر وي هاله ښه وي
او که نه ورځنۍ ښه وي لاښه خر
که طالع او هنر دواړه سره کښېږدي
زه خوشحال به پکښې و نیسم هنر
بې هنر مې که بادشاه د درست جهان شي
هیڅوك نه پسندي په ده دلويئ چر
هنرمند مې که ګدای شئ کنډول واخلي
په لیده به یې هر څوك ښوروي سر

منت په علم په فضیلت بویه. فضیلت او دولت سره توامان دي د علم د فضیلت د څښتنو محتاج بادشاهان وي. هر څيز نقصان و کمال لري ــ د سړي کمال په علم په فضیلت کښې، که یې حاصل کا کمال یې حاصل شو او که نه په نقصان کښې پاتي شو. مثلا اوسپنه پیداده چه توره شي که د استاد تر لاسه ورغله توره ورځني سازه شوه، په صیقل شوه، تېره شوه، موتي میان یې مرتب شول، ترملا شوه، غزاپرو شوه، د کافر تر ورمین پریوته، کمال یې حاصل شو. او که نه داهیڅ نه وي هم پوندہ پاتي شي، په نقصان کښې پاتې شوه ــ نا بوده شمارلي بویه ــ په داشان د هرشي کمال و نقصان شته. لکه شاهین چه له جالې را ووړشي که ښه میرښکاروي، تربیت یې ښه وشي، آموخته یې کا ــ باوله یې ورکا ــ پایه په پایه یې په ښکارګیرا کا ــ زانې چه دده د کمال پایه ده و نیسي، کمال یې حاصل شو او که نه هم هسې پاتي شي په نقصان کښې پاتي شو، دوني نهالۍ، د میوو یاد ګلونو د پاره په باغ کښې کښېږدي که میوه یې وشوه یا ګل پری پوري شول، د باغ څښتن په کار شول، کمال یې حاصل شو او که نه په نقصان کښې پاتې ــ هم په دا رنګ د هر څيز قیاس په زړه راوړه چه هر څيزه داحال لري، تر کاني تربوټي پوري بیا په دا کښې هم تفاوت په جوهر په فطرت کښې پیداوي «خلق الانسان من تفاوت» خلقت د سړیو په تفاوت واقع شوي دي ــ لکه اوسپنه څوك فولاد څوك دانه څوك خوږه څوك ترخه بلکه د سړیو لاتفاوت تر دا زیات په معنی ، د سړي صورت لکه اومه خر من د خیګ هسې مثال لري بلکه ترې بتر، په خیګ کښې وابنه وي یا په تش باد ډك وي یا پکښې

غله وی. یا غوړی یــا شهدیا الوان میوه په رنګارنګ لذتونه هرچه‌پکښی پراته وی دهغی اومې څرمنی حرمت هم په هغه وی په هر خیګ کښی چه له ازله څه اجولی شوی دی تر لم‌یزله به هم هغه ورځنی ظاهر کېږی.

بیت

دخوشحال ختك له عشق ګفتګوی شی

چه په لوښی کښی څه وی هغه‌ترې‌توی‌شی

په داسبب په خوی په خصلت پوښتنه کیږی ــ مدار واړه په اصلی فطرت په ذاتی جوهر په حلیت دی ــ که فولاد نه‌وی ښه توره‌له کومه آهن‌ګرزغوی که‌په شاګردکښی فطرت‌نه وی‌استاد څه‌کا علم وچاوته ښیی که شاګرد عالی فطرت وی د استاد خواشارت ورلره کافی دی څکه څوك ژرتر مراد ورسیږی څوك پس څوك‌محروم پاتــی شی ــ علم څه منحصر په‌خبری کښی‌نه‌دی، څه خو یك لحظه دملا دداشمند په لوستل‌زده‌کیږی نه‌هرچه عالی فطرت وی څویی‌کند ذهن په‌ډیر مښود دملانه زده‌کوی.دده په تاثیر د صحبت د چانه په لیده په اروېده حاصل شی ــ اما لکه‌بېږی. چه په ګودر ګرځی ګودریې دغه دی‌چه د ملا د استاد نه چه زده‌کوی په دا سبب ویلی شوی دی چه اول‌دولت‌مادرزادیا‌دل دانا یا چشم بینا یا ګوش شنوا ، که دواړه نه وی مرګ مفاجات، که اوسپنه هم ښه فولاد وی آهنګر هم ښه او ستاد وی دهغی اوسپنی‌به ښه توره روغه شی کــه آهنګــر ښه نه وی اوسپنه که ښه وی هم هغه هسی توره لکه د اوسپنی کمال‌دی خود به‌ورځنی روغه نه شی په دا واسطه ښه عالی فطرت لره هم ښه استاد په کار شو بلکه که بده اوسپنه وی هم چه د ښه استاد آهنګر تر لاسه ورشی البته توره به ورځنی سازه ګا، مګر هرګوره نا لا یــق اوسپنه وی شاید چه هغه هسی او سپنه‌به دانا آهنګر په لاس هم‌نه‌اخلی چه محنت‌یوری ضایع کیږی څکه چه بدجوهر وی هیڅ دانشمند ورتــه توجه نه کا .

بیت

هیــچ صیــقل نیــکو نخواهد کــرد

آهنی را کــه بد ګــوهــر باشــد

ونی ډیری دی لرګی ډیردی، ولی هسی غشی لکه د خدنګ وی یا د آغزین وی د نورو ونونه وی ــ توره لکه د فولاد د دانــی وی د نــورو

اوسپنو نه وی ـ مرغونه ډېر دي د باز د شاهين غوندي چه اموخته کېږي، انس الفت نيسي، هنر اخلي نور نه دي ـ پس د باز د شاهين کمال په دا کښي دي چه په خپل هنر په خپل ښکار کښي هر چه ډيولره‌امکان لري په هغو واړو کښي آراسته شي ـ پس د سړي کمال هم په داکښي دي چه په واړو هنرونو، کسبونو، خصلتونو کښي وجوړيږي. ولي‌چه‌دي پيدا ديو کارونو لره دي ، د ده په وجود کښي د زده‌کولو فطرت جوهر شته‌لکه په باز په شاهين کښي چه هغه د ښکار د هنر فطرت شته چه په زاغ په زغن کښي هغه فطرت نشته، ولي ورځني د باز د شاهين هنرونه ځوك نه غواړي هر ګاه چه په سړي کښي ځاى شته ځکه ورځني طمع دواړو هنرونو شي ، چه په هنرونو،خصلتونو کښې ډېر داخل وي.هومره شرف منزلت ډېروي، تر هغه حده چه تر کمال ورسېږي چه کمال يې حاصل شو دا ځاى بيا يوه زوروره‌دعوى پرته ده چه هغه نشاء دجبليت د جوهر ذاتي ده . فطرت‌يې ؤ چه د فطرت په زور تر کمال مرتبه‌ورسېده لکه ځيني حکماء دفلاسفه چه هم علم ددوى رهزن شي .

بيت

علم که از وى دو جهان روشن است

طرفه که هم رهبر و هم رهزن است

لکه ځيني عالمان دنيا پرست جاه طلب چه دو آويه مذهب هم د دوى په طفيل پيدا دي .

بيت

در اصل مذهب همه صاحبدلان يکى است

از ناقلان بد سخن اينجا رسيده‌است

علم هغه دي چه سړي ودين وته راخکوي د دنيا مينه په زړه کښي سردوي، د طاعت عبادت محبت عرفان يې زياتوي. قاضي نه شي، مفتي نه شي، زکوة خور، سرسايه خور نه شي، نفساني نه وي عالم‌رباني‌وي.

نه چه نفساني شيطاني ديواني چه دملړکانو خوشامد ګوي‌وي ـ ددنيا د علم په وسيله تقرب د اميرانو حاصل وي، دين په دنيا وپلوري داعالمان نه دي طفلان دي .

فرد

قاضي ومفتي و صوفي همه طفلان رهند

مرد گر هست بجز عالم رباني‌نيست

هرچه باوجود استکمال دمیردوزیر تر خنگ دی عالم ولیده‌مشابهت دی په عطار ، لون لون خو شبویی ورځخه ولی ناست دکناس په‌کور کښی لاپه تیره قباحت داچه قلم په لاس واخلی دامیرانو خدمت قبول په‌کفایت په توقیر دامیر مشغول شی . گویاچه دې کناسه کاری اختیار کړه هغه کښلی نافی خو شبویی چه دعلم دحکمت دی‌دنجاست سره خلطی کړی تو به له هسی کاره !

**مصرع**

درنجاست مشك بویی زان چه سود
هسی احوال که‌دم دعلم ددانشمند ی‌وهی څه سود .

**فرد**

څه بد ذات به په دانش‌په علم‌نورشی
حبشی چه‌په‌مخ خال کښیږدی لاتورشی

په‌شیطان کښی فطرت دزده کو لو ډیر ؤترهسی حده چه‌هو مره علم‌یی زده‌کړ چه معلم دملایکو شوـ چه په جبلیت کښې بد ذاتی‌وه هغه هسی ډیرعلم دده دغاړی طوق شو، علم‌په مثال دگبینه دی په چرکـین لوښی کښی دا چولو نه دی .

**بیت**

علم‌معشوقه دی‌معشوقی‌لره‌کف بویه
که‌ناسیال‌وته‌واده‌شی‌خرابی‌یی‌لویه‌لویه

**دریم هنر د خط چه دا خل د کسب کـمال دی**

علم‌او خط سره لازم ملزوم دی. علم په مثال وحشی دی ، خط یې‌لکه کمند چی وحشی پرې قیدشی .داهومره کتابو نه به‌نه وو که‌خط نه وی. په حساب، په کتاب، په سیاق به څوك پوهیدل که خط نه وی.دجهان‌کار سره ټول په‌خط دی. لوی هنردی، منزلت ،مرتبت یې‌هم‌ډیردی، قـدر قیمت یې ترحساب تیردی . کی‌یې دولتمند زده کازیب وزینت دی، که‌یی درویش زده کا ددرویش دولت دی .

**مثنوی**

خط خوب ا ی پسر بس دلپذیر ا ست
چو روح اند رتن برنا و پیر است
اگـر منـعم بـود آرایش ا و سـت
وگر مفلس مرا وراد ستگیر است

مبالغه ددې فن ډېره ده .

**بيت :**

قلم گفتا كـه من شاه جـهانـم قلم كش را بدولـت مير سانـم

الحق څو چه څوك وايي داهنرلايق د هغه تعريف دی . كاريې پټ نه دی څرگند دی .

ولی حيف دا چه د هر چا پهمصاحبت تن وركا ، لارنهگوری. هر څوك يېچه پهلاس واخلی، نوردهغهشی ، د هرچا يار دی.

**رباعي :**

درسته ښه يې ته دلـداره يوه چار دې ده بـېكـاره
چه وتـا وتـه نـژدې شـی نوره يـې د هغـه يـاره

كور دده وران شه چی دده دمخه څه ورانی ، ودانی په جهانشی. په هرچا چه دی داتور مخ بـرابـركا كيميا گر دی ، سيس يی زركا. بې كامه وی هزار كامرانۍ وركا .دډېرو په سر تاج كښېږدی ، دډېرو خاوری په سر كا . په داسبب چـهدوزبان دی . د جهان سرگردانـۍ په ده . هر زمان يې سر په تيرهتيغواهه شی . چار پخپل سر كا ، مراد و نامردانو وركا . ځان گداز رفيقنواز دی . جوانمردی ډېره وفايـی تر حده تيره ده .

دريغه چه د نا اهلو په لاسكښې نه وی په لاس داهلووی دده د سر بلا په بدذاتو ، په سفلهۋ پـهسهلووی .

زده كول د خط موقوف دكاتبپه تعليم دی پخپل طور چه ښه خط گوری ، كښې (۱) طبيعی باله شی .دا هم كښل زده كا اماشنيدهكیبود مانند ديده ـ چه كاتب خوش نويسورته د خط قواعد ښيی ، اصـلاح وركوی هغه خط په قواعد زده شی اوزر زده شی خوش نويس هم هغهباله شی چه خط د استاد زده كا .

**بيت :**

هر آن كاری كه بی استاد باشد يقين ميدان كه بی بنياد باشـد

---

(۱) دلته كښې د كښل لـهمصدرنه د حال فعل دی يعنی ليكلی يې .

چه یو ځله په قواعد درست‌خط د کاتب نه په تعلیم واخلــی ، قاعده د هر حرف د کښلو زده کا ، نور مې د خپلو متو دی ، څو چه مشق کا هومره به یې خط پخیږی. دخط هنر ، دغشی هنر داد واړه تــر ژوندونه ، څو سړی ژوندی وی‌مشق‌غواړی . که هر څو خوش نویس‌وی یاتیر انداز وی ؛ چه مشق پریږدی‌خوش نویسی تیر اندازی له سړی ولاړه شی . هر چه خوش نویس یاقادر انداز دغشی وی هره ورځ په ځان لازم کا چه هومره مشق د خــطهومره دغشی ، هغه وظیفه خپله نه ناغه کوی . ځینی خوش نویس یوه‌قطعه دوه دری بیته وکښې ، په مهر بها کیږی . ځینی په روپی ځینی‌په‌توری (۱) تر دا پوری قیاس د خط د هنر بویه چه‌څوتفاوت لری . ځینی‌سړی هم د خط په وسیله مقرب د بادشاهانو شی . فقط هم دا د خط‌حیثیت سړی تر هسی درجه ورسوی پس دا هسی هنر چه په جهان کښې‌په معنی کیمیا بلکه تر کیمیا بهتر بویه ، چه مې د سړی حاصل شــی‌همیشه دې ساتلی لری په‌زوردمشق په دا باب تاکید ډیر دی .

**بیت :**

گرتو میخواهی‌که خطت‌پخته گردد ای انیس
مــی نویس و مــی نویس و مــی‌نــویس

هرچه‌عالی فطرت دی‌په هرهنرچه لاس و لګوی قصد به یی داوی چه په هغه هنر کښې د بل نه تیروی‌او که نه برابر وی‌تر چانه کوزخونه وی .

**بیت :**

ازهمت بلند نباشد کــه قاسمی   شهر هری گذار دوقانع‌بتون شود

حسد په هیڅ کار کښې له چاسره نه بویه ، ولی غبطه بویه ، دهنر په نقصان کښې چه څوك پاته شی‌دلالت یی د همت او د فطرت پــه نقصان کیږی . په نقصان دې راضی‌نه‌وی ، د هنر و کمال وته دې مې‌کا.

**فرد :**

خط که از شایبهٔ حسن تهی است   بهرهٔ کاغذ از ورو سیهی است

(۱) د توری پیسی په معنی .

خط چه حسن ، ښایست په کاغذونه کا ، خو ګڼه د کاغذ سپین مخ یې
تور کا ، د زیب یې ویوست .

هرچه نیك بخت وی هرګز بهدهنر د کار فارغ نه وی عبثی چاری
به نه کا . موږه استاد شاه اویس صدیقی مولتانی ډیر بزرګ متبرك
سړی ؤ ، د علوم ظاهری او باطنی بهروړ ؤ ، اکثر به یې دابیت وایه :

**بیت :**

معشوقه کتاب است وکمان است وقلم دیگر همه محنت است ورنج است والم
دقلم سازول برابر دکمې ګوتی تر بندتراش بویه، شګاف دې برابروی چه
یو اړخ بل اړخ یې نری پېر نه وی.د مشق قلم څو پېړوی هومره ښه وی
په محرف قلم زر خوش نویس شی.

**فرد :**

محـرف تراش و محـرف نویس باندك نوشتن شود خوش نویس

محرف ونوك دار قلم وته وایی.د خط مراد په مړوند دی چه د مړوند
قوت وشی ، نور ګوتـی پـه قلـم وجوړیږی . د مړوند قوت بی غمـه
قلم نه شی چه قلم لك وی ، ځینی حرف ورځنی ووځی قوت د مړوند
کېږی . که دې مشق ووړ حرف وی هم دې کته لکه کته ګوته هسی وی.
مشق په تخته بدفتین بویه .که په نری قلم ډیـر کښې خـوش
نویس به نه شې که په غټ قلم لږ کښې خوش نویس به شې . قلم چه
روغ کا په نقطه دې وازمیی که نقطه ترې ښه پریوته ښه او که نه بیا دې
قط کا . قلم تراش دقلم ډیر تیره بویه هاله به ښه روغ شی ، ښه به قط
شی نقطه به ترې ښه پریوزی . داکار واړه په چاړه تعلق لری .

**مثنوی :**

کاتبا چون قـلم تراشیدی خاك بر پشت خامـه مالیدی
اول آنرا بنقطه تجربه کن یاد گیر این سخن زپیر کهن
از قلم نقطه چون درست آید خوش نویسی اگر کنی شاید

دقلم د خط کار ابتدا لههوشنګهشوی دی چه لمسی د کیو مرث پیش
دادی ؤ . د یوې په قید کړ ، واژه یې . د یو ورته ووې چه که می نه
وژنې زه به یو هنر درته وښیم .

پس له عهد پیمان دا هنر هغه دیو وروښایه ، دده جان بخښی یې وکړه . د هغه را په هیسی دا هنرګډ شو . د خط وضع په ډېر رنګه په هره زمانه کښې حکیمانو فاضلانو کړی دی .

اوه خطه چه هفت قلم یادېږیمشهور دی چه قرآنپرې کوینښشی. سواله نورو خطونو چــه عبرانــی-یونانی ـ فرنګی ـ هندی ـ خطائی دی ـ نستعلیق چه اوس مشهوردیدوسو تیرسو کاله وشول د میر سید علی وضع او اختراع دی . مرکباتیعنی سیاهی سازول . اول خولوګی دتیل بیا چاړ مغز ، بادام پسته ،اشاړی بادام ، دګور ګوری زړی هر چه روغن غوړلری ؛ هغه دېوسیځی،لوګی دې واخلی ، یوه بخره لوګــی، درې بخرې د پلوسې دکنجغری کنډسره دې ګډ کا په لرګی دې مږی ؛ څویی مږی هومره به ښه سیاهی شیخو هم دا بس .

## څلورم هنر د شعر د نظم

دا هنر چه د شعر د نظم دیهم داخل د کسب کمال دی امامشتق دی له شعوره ، چه جبلی طبیعت دشعر لری شعر د هغه دی . فنونــه صنعتونه یې په کسب حاصلیږی که ډېر تحصیل د علم وکا ، صنایع بدایع د شعر زده کا ، چه طبیعتد شعر جبلی نه لری خبره به نظــم نه کا ، د شعر هم جبلی طبیعتبویههم یې علم د صنایع بدایع بویه ، چه واړه زده کا ، سوای تر دا نمکشیرینی د شعرتعلق په درد پهمحبت لری،چه پختګی یې په استعمال . دراصل شعر په لغت کښې کلام منظوم وته وایې ، دواړه مصراع د بیت پهتول تللی ، په حرفونو سره سمی ، عروض قافیه سره جوړ ـ په داکښېهرچه وی که قصیده وی ، که غزل، که رباعی ، که قطعه ده که مخمس،که مسدس ، په ډېرو جه شعر وایه شی . قصیده هغه چی تر څورلسبیت زیات تر سل تېر . هرچه وایی پکښې پند یا نصیحت ، یا مدح ذمراوړی . غزل تر پنځه بیت ور په هسی ترڅورلس پوری ، هرچه ویپکښې تعریف د معشوقی د خط وخال دګل ، د ګلزار ، درد ، فراق سوزوګداز له دې حاله چه پکښې وایهشی. قطعه مطلع نه لری په دا قطعه بللهشی ، که دوه بیته که اوه اته لس شل هرچه وی ـ رباعی هغه چه دوهبیته وی . مخمس پنځه مصرعی ، مسدس شپږ ، بیا تر جیع بندترکیببند ډېر طرز لری ، چه متقد مینو د شعر قرار ورکړی دی .

که اوس د طبیعت او دفضیلتپه قوت څوك خپل تصرف پکښې کا،

هم ځای لری . دوسو تېرسو صنعت‌لری . ابتدا د شعر د هنر د افلاطون حکیم نه شوی ده . د شعر پایه‌لویه‌ده ، د حکمت سره یاد شوی دی ، پیغامبرانو ویلـی دی ، د پیغمبـراصحابو ویلی دی . د امیرالمومنین علی کرم‌الله وجهه تمام دیوان دشعرپه عربی ژبه شته . هغه چه وایی‌چه محمد رسول‌الله (ص) طبیعت د شعرګویی نه‌ؤ . هغه نه پوهېږی چه دا هسی وایی . که دا هسی وی نقصان‌لازم کېږی . نقصان د رسالت پناه په کامل وجود روانه دی . تمام‌کمال‌په جمیع مخلوقات کښې د یوه دده دذات حاصل ؤ ، عقل کل هم یوازې‌دده نصیب شوی دی . تر ازله تر ابده پیغمبران اولیا هر څوك چه دی‌که دديو واړو پوهه عقل ټول شی ؛ دده تر پوهی تر عقل نه رسېږی .

ترو د شعر څه کار دی چه دده‌به نه ؤ ، تر هر چا نه دا حال دده زیات‌ؤ . اما ژبه یې پری نه آلوده‌کوله په څو سببه ، یو سبب دادی چه مشر کانو کافرانو به تهمت دشاعری پرې کاوه .

دا آیت په دا باب دی . و ماعلمناه‌الشعر و ما ینبغی له .

هرگاه چه د شعر په نه ویل‌ګمانونه پری کېدل ، چه د قر آن آیتونه به پری راغلل مشرکانو به‌ویل چه دا شاعری کا ، که شعریې ویلی لا به یې ګمان پر زیات شه .بل دی مامور په دعوت د خلایق ؤ منتظر دوحی ؤ ، التفات یې په امثال‌دديو کارونو نه‌ؤ . بی بی عایشـه (رضی‌الله عنها ) په دا کار کښې‌ماهره وه ، ډېرې قصیدې یادوې ، څوزره بیتونه یې یاد ؤ ، ګاه ګاه‌به یې حضرت ته ویل ، حضرت به ورته موسیده . اعشی شاعر دسرورپه خدمت حاضرؤ ، د شعر مذاکره په تمام قریش کښې مورثی وه .د شعر کار عظیم دی .

بسم‌الله‌الرحمن الرحیم هم وزن‌د نظم لری .

**بیت :**

بسم‌الله تاج سر قرآن است   نیز سنجیده بدین میزان‌است

ددې خانه برانداز سینه ګداز څوتعریف‌توصیف‌کوم لیګدلی‌اوردی چه‌هرڅه‌سره په‌مخ‌وړی . میلمه‌زوروردی چه واړه وینې دلړ مانه خوری .

**بیت :**

هرکه سخن را بسخن ضم کند   قطرهٔ از خـون جگـر کم کـند

پوهه یې دشواره ده ، ویل‌یې‌ګران دی ، د هر چا کار نه دی .

هغه دې وايې چه سخندان وی ديوه‌لفظ د آراستګۍ دپـاره خوب‌په‌سړی حرام کا .

**بيت :**

برای پاکی لفظی شبی بروز آرم که مرغو ماهی باشند خفته‌وبیدار
يو يو بيت يې لکه د فرزنــدزوول هسی شولی لری . خدای دې په دا رنځ څوك ګرفتار نه کا .

**بيت :**

نګاه کردم‌واندرجهان‌یمین ویسار زشاعری‌بتر اندر جهان ندیدم‌کار
خوبی يې په دروغ کښې څودروغ پکښې ډېر هومره يې خوبی زيات .

**بيت :**

در شعر مکــوش انــدر فــن او کــه اکــذب اوســت احسن او

عجب دا چه په ده کښېدروغ‌لکه رشتيا هسی لايق د تحسين وی. آرايش ، زيبايش يې واړه په دروغ،دروغ پکښې روغ دارنګه هنردی ، پوهه زده کول لازم دی ، ولی پــه‌اختيار نه بويه.

**بيت :**

شعر گفتن گرچه در سفتن بود نیك فهمیدن به از گفتن بــود
د شعر طبيعت په مثال دتوند باد دی ، لويې ونې طاقت لری چه ورته ودرېږی او که نه چه بنيادمحکم‌نه لری ، هغه ونی له ويخه ولوړوی. قوت د علم بويه چه ويخ يې پرېمحکم وی . او که نه بې آفت مضرت به پاته نه شی . چه بې علم شعروايې څو نقصان لری .
اول خو به‌يې درست ونه‌وايی،د شعر د عيب جاسوسان ډېر دی ، ځان به د خندا کا .

بل دا چه که فقط د شعرصنايع‌بدايع ، د عروض علم زده کا قوت‌يې د نور علم نه وې خطا به ور ځنی‌واقع شی ، ايمان به بای کا .
بل دا چه د شعر مستی ډېره‌ده چه تاب يې د مستۍ د علم په‌زور رانه وړی مخبط به شی . که له دې‌واړو کارونو تير کمال يې حاصل ،

هغه سړی که شعر وایی هغه علم حکمت فضیلت دی ، وهغه وته که رخصت نه دی هم رخصت دی .

**رباعی :**

په‌شعر دی هغه دی‌چه‌یی‌وایی‌دانا　هغه‌چه‌شعر نه‌دی‌چه‌یې‌جوړ کاندی‌کانا
دواړه توکه‌چه وی درته‌وایم‌په‌معنی　یو آوازدخره دی‌بل‌آوازدی دسورنا

## پنځم هنر د تیر اندازۍ دی

دغشی‌ویشتل سنت دی‌رسالت‌پناه وته چاووې چه کومه وسله بهتره ده ځواب‌یې ورکړ**الرمی الرمی**یعنی غشی ، غشی . دا حدیث په مبالغه واقع شوی دی . دتیراندازۍدعلم رساله لویه ځو جزه وه . په هغه کښې ډېرې قاعدې د تیر اندازۍ کښلی دی . قبضهٔ بهرامی چه بهرام ګور په هغه قبضه غشی ویشتل‌غشی یې تر هاتی پریوتلی ؤ بله‌شیر جنګل وغیره ډېرې قبضی یادې‌شوی‌دی . حاجت نشته چه واړه کښې شی ، په هره قبضه چه وی خواستعمال یې ډېر بویه ، ځو ډېرمشق دغشی کېږی هومره یې مې **اوشست** ورته جوړېږی . که مشق یې یوه ورځ پرېښی‌شی ، دلسو ورځوکمی په تیر اندازۍ کښې وشی .

**بیت :**

اگر خواهی که گردی قادر انداز　بیندا زو بیندا زو بینداز

د تیر اندازۍ مشق په نرمه‌لینده بویه ، خاك تودې و ته دې نیژدې په یوه قدم په دوه قدم دې‌درېږی ، ځو لنیده نرمه وی ؛ هومره بهتری وی ، مې‌پکښې ښه جوړېږی، بل یې دغشی زیان نه وی ، بل یې ګورت پکښې ښه پوخ شی ، بل‌یې‌شست پکښې صاف شی . که لینده ټینګه وی ، داواړه برعکس وی .مې یې پکښې وتر هېږی ، ګورت‌یې رنځور شی ، لکه د شوره پشت‌آس‌شا ، غشی یې ماتېږی . غرض چه دنرمی لیندې په مشق فایدی ډېرې‌دی . دابیت چا ښه ویلی دی .

**بیت :**

از کمان سست سخت انداختن　کار هر بافندهٔ حلاج نیست

د مشق لینده دې بیله د ښکاردجنګ لینده دې بېله‌وی . هغه‌چه‌په نرمه لینده مشق ډېر کا ، ټینګه‌لینده د هغه دوړاندی هیڅ نه وي .

تعریف د ښې لیندی دادی چه هم په‌نرمه ولی هم په ټینګه ، هم په ښی ولی ، هم په کینه . لکه څوك یې په‌ټینګه لینده کا دی یې په نرمه لینده وکا ، وکمال ددې هنر دادی چــه‌غشی تر غوا تر میښه هسی آزاد پریوزی چه دغشی پر خانی په وینوکګړې نه شی . هرګاه چه په دا فن کښې کامل شی نور دې سل یازیات‌یا کم غشی مقرر کا ، چه په هره‌ورځ استعمال دغشیو په خاك توده پــه‌نرمه لینده کاندې چه هیڅ چپری‌ناغه نه شی .

## شپږم هنر د آب بازۍ

دا دوه هنره یاد شوی یو تیراندازی بل آب بازی نور هرڅه‌چه‌دی په کسب یاد شوی . که آب بازی‌چا نه زده وی لوی نقصان واقــع کېږی . آب بازی په دوه درې رنګه‌ده :

تش بازو ، شناز ، دکــډو ،ګړی . ښه لامبوزن هغه دی چه دایی واړه زده وی او که نه تش بازو تروا‌ړو بهتر . که تش بازویې نه زده وی ، شناز او دا نورې زده وی ؛ داهیڅ ، کلی ضرور لری : په ځان‌خونی چه تش بازو لامبوی نه زده وی ،په شناز ، په کډو به زړه ورتوب په سپندکا ، مګر ضروروی. لامبوزن‌لره بویه که هرڅو ډېر لامبوزن وی، هم دې په دریاب ، په ګرداب دلاوری نه کا ، د اور ، د اوبو ، د مار ، د زمری سره څه دلاوری — ډېرلامبوزن‌په بی طمع ځایه کښې ډوب شوی، ډېر پاړو ګان دمار دچوټه وګور ته‌لاړدی .

### قطعه :

غره مشو باینکه جهانت عزیزکرد ای بس‌عزیزراکه‌جهان‌کردزودخوار
ماراست‌این‌جهانوجهان‌بخوی‌مارګیر از مارګیر ماربرآرد ګهی دمــار

## اوم هنر د اسپ تازۍ دی

د آس تعریف په قرآن کښې‌شوی دی . آسونه د ملوکانو ددولت ستنی دی ، د سریاران هم دوی دی.قدر یې ډېر ، منزلت یې تر حساب تیر دی . که نام دی په دوی کښې‌دی ، که کام دی په دوی کښې . که عربی دی ، که عراقی دی که ترکی‌دی ، که تازی دی که یابو دی واړه ښه دی .

### بیت :

آســونـــه واړه ښـــه دی      بد هغه چه خار به نــه دی

که هر څو اصیل نجیب آس وی چه څورب نه وی پکار نه دی . کـه هر څو بد وی خو بیا څورب پکاردی. نه نور څه نه وی یخنی خوبه شی. د اس رنګ هم هیڅ اعتبار نشته ،هر رنګ چه وی خو قوی هیکل بلند بالا اوږ د کتبه دې وی . خوش رفتارخوش راه که وی واه واه او که نه دونده خو دې وی . که ښه ساده وی لاښه څو په دوند کښې فایـق تر بل آس وی .

آس هغه دی بودری خور ، شوره پښت ، په یوه سترګه چغر دادې نه وی ، کم خور دې نه وی کهنه ننګ دی نه وی ، سر کښې دې نه وی، دا دآس نکوهش دی . که هارون یا سیخ پای وی امکان لری چه علاج یې وشی اما سر کش په هیڅ رنګ ښه نه دی . دآس سر کښې، هارونی سیخ پایې واړه د سواره دناپوهـی شی ، یایې بی روخه پتازیانه ووهی، یا ملونه نا موافق ور واچوی خوله یې خوږ کا ، یا جای بند وی ، شنه یې خوړلی وی په ځای بندی کښـې زغلوی ، بی ځایه حکمونه پرې کا ، آس وران کا ، کهنه آس هیڅکله بدنـه وی کـه هنر مند قرار سورمومی سوارکارهغه باله شی چه دا هسی وران شوی آسونـه سـاز نه کا ، هومره ډیر نه سورېږی .

آسونه تیارې جنازی ، یو چوګـان وهل بل دړی ویشتل په آشنامیدان چه لیدلی کتلی میدان وی ، یا پـه جنګ بل ځای په ملوك باندی د آس دزغلولو حکم نه دی . په دامیدان چه لیدلی وی په دا هسی میدان د آس زغلول ، دغشی د آس په شا ویشتل،چوګان بازی دادې ډیر کا ؛ څـویی دا استعمال ډیروی هومره ترجیح په نورو ملوکانو لری . د جنګ په ورځ به یې همدا استعمال په کار شی ،که هره ورځ دا استعمال نه وی په هفته کښې خو دې یو ځل وی . نیزه بازی ، دار ویشتل هر چه وی پـه دا استعمال کښې واړه ښه ، هرملوك چه په دا استعمال مشغول نه وی ملوك نه دی ، مفلوك دی . هر چه په آس ښه غشی ولی دا هسی یو سور به دې تر ډیرو نیزه بازو .

**بیت :**

نـه یو سور د تیر انـدازو نه ګورم د نـیزه بـا زو

په جهان کښې چه څه دی خوښه ځوانان او ښه آسونه او ښـه غشی دی . ښه هغه ځوانان چه ښه تیر انـداز وی ـ ښه هغه آسو نـه چه تر دا هسی ځوانانو لاندی وی ،چه دا درې توکه سره جوړ شی په کاته یې د سړی زړه سوړ شی .

**قطعه :**

ښه درسته تر ملا تــړلــې     په ښه آس چه زلمی سورشی
په دیدن یې دعــا کېــږی     ننداره یې نور په نور شی
نیکخواهان پرې سرفخری کا     بدخواهان واړه نسکور شی

آس دې جایې بند نــه وی ،راتب خور دې نه وی . آس لره ، وربشی نافی دی . په کال لس سیره غوړ ورلره ډېر دی چه د ژمی په سر د ژمی په وانه یې خوری . نور دې ښه په پوخ وا ښه او په وربشو مړ اوه شی . او ښه دې تیزه شی . مګر یوڅو ورځې خوید دې وخوری . پس له خوید دې ښه په آهستګی خنك کانور دې په سواری کښې لری . لــه نوره سواری موقوف یو کروه دوه کروه خو دې حق نا حق څوك پرې سوریږی . چه خوله یــې ووزی . کیزه یې هم لازمــه ده حو آس ښــه سوړ شی هومره ښه د کم خوری علت ، د خارښت ، د بــدپشمی ، د کمزوری ، د باد خوری ، د موترودبلا بوغمی علت واړه په داسبب وی چه کیزه کرمه پرانته شی یا اوبه چه ګرم وی ورکړ شی بیا ګرم پــه سواری تش د آس تر کیب خودې معلوم وی چه آسونه یــې تــر سر تیروی پخپله د آس په ترکیب په جمال پوهېږی . د رنګ د ترکیب دا شمار د سوداګرو دی . د تردد څوانانو لره خو کار هغه دی چــه مذکور و شه ، غیرت ، جرأت ، قوت، قامت بس نورې مکابرې دی . هغه چه چا ویلی .

**بیت :**

اسپ شاهان کمیت بایــد خنك     ګردن او دراز و کــوتــه و لنګ
ګردن لنګ است اما کمیت یــا     سر خنك ـ یاسمندا دا پــوچ (۱)

هومره امتحان شوی دی چه بــورسرېچن وی ، نازك پښت ، ژړیی شالګیږی . تور آس ساړه وتــه ښه دی ولی کرخت غوندی وی .

په ډېرو کښې یو نیم ښه وی.چه ښه وی خو ډېر ښه وی او که نه اکثر پکښې هسی ښه نه وی . سرنګ جرده آس واړه ښه وی مګر یو نیم بدوی . په رنګ پورې څــوك نــه خوښوی اما ښه دی . سنجاب هــم ښه وی نور په واړو رنګو کښې نیك بد شته . د آس د ترکیب تعریف په اته حرفه چا یاد کړی دی : څلورجیمه څلور سینه ـ یو جیم چشم ، بل جیم جمال ، بل جیم جلب ، بل جیم جوان . یو سین سر ، بل سین،

(۱) کې مې نقل شــو خــوعبارت نیمګړی ښکاری .

سینه ، بل سین ساغری ، بل سین‌سم ــ یعنی خوش چشم خوش‌جمال خوش جلب جوان ــ خوش سر ــ خوش‌سینه ــ خوش ساغری ــ خوش سم دې وی . دا خود معلوم دی چه‌دا هسی ددې آس ترکیب پټ نه‌پاته کیږی بصارت یې لانور څه دی ؟

د آس بصارت ، نظر د هر چاکار نه دی . ښه آس ، ښه توره ، ښه عورت په بخت په طالع په لاس کښیوزی . تجربه یې هومره چاکړی ده چه پوست دې تنګ وی ، شادېږبله ته نیژدې وی .

ستر نی دې غټ‌ـی وی سردې‌هلك او بی نوشت وی . غـاړه ، سینه ، سوم ، نوی دا هسی آس‌ښه وی دا قیافت چه یی وی ــ اما کــوره چه کــوم په څــه رنګ‌په څــه تــرتیب اس احــر لره ښه وخی ؛ د آس چه داد واړه کاره‌امتحان شی چه دور دم وی ، ډیر تروه ولاړشی ، وزغلا وه شی ، بی‌دمه بی تبه نه شی او د غرونو پــه سنتغ په خوږ ، په لوړ ، پـــــه‌ژور ښه وخوت ؛ بودری ، بد چشمی توری والی د ابلا په کښیې نه وی‌نورهغه آس لکه خان هسی د ساتلو دی. داهسی اس که وی خو به تر ترکی‌وی او دا هسی ترکی به تر شل عرافی وی . والسلام

## اتم هنر د ښکار حلال کسب دی

حلیت یې په آیت ثابـت دی( یحلکم صیدالبر والبحر ) دخوشکۍ دترۍ ښکار حلال دی . خوښی دښکار ډیره ده ، هرچه عالی فطرت دی په ښکار ډیر مین دی . ملوکانولره ښکار لازم دی . ملوکان د ښکار دی ښکار د ملوکانو دی . دښکارپه استعمال کښې د جنګ د تردد استعمال حاصلیږی ، دلاوری اوتهورپکښې زیاتیږی . چه د ښکار په کار کښې بی مهارته وی نقصان صریح‌واقع کیږی . ښکار ملوکو لره هغه ښه دی چه د سورلۍ تلاش پکښې‌ډیروی پیاده هم پسی درومی . چه د سورلۍ د پیاده د تلو دواړه‌ورزش‌یې په ځای وی چه په دا ورزش د جنګ په کار په تاخت په یلغارسورپلی په غره ، په سم، هر چرته تلاش تردد وکا .

که دا کار یی نه وی پــه دااستعمال ورزش کښې جوړ نه وی ، هیڅ به یی د لاسه ونه شی ، کاهل‌او عاطل به پاته شی . په واړه ښکار کښې ښکار دغشی ښه دی چه په خپل ګورت پخپله مړانه باتور وی. غرڅه ښکار شی ، دا لوی کار دی ،که ښکار دی داښکار دی . په وړاندی زمانو هم داښکارؤ یا دسپی ، ورروستو ملو کانو تصرف پکښې پیدا

کړ . دباز د شاهین ، دیو زو غیره‌راپیدا شول . باز د فریدون په‌وخت ونیوه شو ، ښکاری شو . شاهین‌پس فریدون . چرغ د عـربستـان ملوکانو اخر لـره ښکاری کړ . لګر،باښه ، شیکره بیسره دا تابع ددوی دی .

د هغو په قیاس دا هم ښکارشول . عقاب او شنقار د افراسیاب په وخت . دټوپك ښکار له‌فرنګستانه‌اوس په دا اخرپیداشو . د ماهـی ښکار ، د صیادی ښکار چه د اهل‌حرفت د روزګاری عالم ښکار دی . لکه په دام ، په جال مرغونه نیول‌دا صیادی قدیمه لادآدم دوخته ده ، په دا آخر چه د ټوپك ښکار پیدا شوداهم بد ښکار نه دی ، فن فنون پکښې ډیر شته لکه‌غرڅه‌وته پټیدل،څو کمین رونیول ، پیاده په غرڅه پسی ګرځیدل دا استعمال بد نه دی‌ملوك پکښې تازه په ځان نغښتی‌وی هوس ډیر لری ، د ټوپك ویشتل په‌دوه رنګه دی، یوپه مځکه شی ، چه پښی په مځکه ښځی کړی و لی یې‌داشان ویشتل دټوپك په هنرشمارلی نه دی . ښځه به هم داهسی ټوپـك‌ولی بلکه هلك هم ـ دټوپك دویشتلو هنر په سر دست دی ، هر چه‌ټوپك‌په سر دست ښه ولی هغه مرد دی، هغه ځوان که په ښه آس سوروی‌تر شلو مسلح سپاهیانو به دده کار د قزاقی په جنګ کښې به وی ،ښکار لره دقزا قی جنګ لره لنډ ، کوتاه‌سبزرخت ټوپك بویه ، چـارمثقالی په طول دوه ګزه لاکم ، تریوه ګز زیات ، د توپچی چالاکی چستی‌هنر ده ، چه زر ټوپك ډك کا ، زربی ولی ، د نخجیر په نزدې ورتله وارخطا نه شی . په‌استقامت ورته‌ناست وی په قرار زړه یی ولـی ، ورتـه‌بیړندی نه شی او که دا هسی نه‌وی پوخ ښکاری نه دی ، څه شو کـه‌ډزاوزا کا ، یا غرڅه وژنی ، بـل ښکار د سپی دی په دا کښې هیـڅ‌هنر نشته ، که سپی ښه ښکاری وی پخپل هنر به ښکار کا ، که ښه‌ښکاری‌نه‌وی پریشان‌بی‌روش‌به‌زغلی، ځان‌هم ابته کا ، دښکاری خوا هم‌جل بل کا ، د سپی ښکار اګر چه ښه ښکار دی اما ځای طلب دی ،اول میدان غواړی چه لوړ ، ژور ، ځنګل نه وی بیا هسی سواره غواړی‌چه ورپسی یی زغلوی ، ورسرونه ورپسی ماتوی . داخبره له عقله لری‌ده چه په نا لیدلی میدان به آسونه زغلول شی . که د بزونو دګاوزودخر پشیو ښکار پسی شی ، دابهتر چه په غره کښې وژنه غلتیږی ، سپـی یـې هر چـر ته ونیسی یایې چه کا چه په غشیو نه ویشت شی،ګاوزنه غلطوی . خر بیشایه هم دا هسی دګرجی سپی ښه ننداره شی،ښه ګرجی به تر تازی دی . چه د بازونو سره معلم شی ـ بیا ښکارد بازد شاهین د مرغونو دی . په‌دا

کښې ډېر هنر حکمت دی چه دآسمان‌وحشی مرغونه نیول شی ، آموخته کول شی .
انس الفت تر هسی حده‌حاصل‌کول چه یار مصاحب د سړی شی. سړی چه پرې حکم کا ، حکم یې‌په ځایه وی . نور مرغونه نیسی ، ته وګوره چه دا څومره هنر حکمت‌دی . دا کار داخل دعلم دی . د هرچا کار نه دی ، زوروز هنر دی ، ویل‌یې‌څه حاجت چه کارېې پټ نه دی ، هرملوك چه داهنر نه‌لری ګویا چه‌یو رکن د ملوکانو د ارکان ورځنی پاته دی . لکه د باز ، د شاهین په سترګو سړی چه ماهر وی پوهېږی چه د ښکار دی که د ښکار نه دی ،آموخته دی که نه دی . د ځانور سترګی پېژنی هسی چه په دا هنرکښې کامل شی د دوست ددښنه په سترګو وپوهېږی .

بل ملوکان د توری کسب‌لری،بهادران دی ، مظهر صفات جلال‌دی دامرغونه هم د ملو کانو پــه فطرت‌پریوتلـی دی مظهر صفات جلال دی وهندی دی ، بهادران دی . کل حزب‌بمالدیهم‌فرحون. بهادران‌به‌دبهادرانو شی ، چه باز شاهین وغیره .
د ښکار مرغونه تلاش کا ، په ښکار منګلی سری کا ، بــهادری پکښې وکا ، ددیو هم فرحت حاصل‌شی . هم په استعمال د شجاعت دتهور ورځنی وکا ، و به وینی چه‌هومره کتره شاهین هومره لویه‌زاښه په همت سره وهی رایی کوزه کا ،چه دا هسی همت ، جرأت لری موږ به هم هسی کړو .
که غلیم ډېر وی یا لوی وی‌هم به ملاحظه ورځنی نه کړو ، لکه شاهین چه غوټی کا ، موږ به هم‌هسی کړو . غرض چه داویل شاخ در شاخ ډېر دی ، دا ښکار فایده‌کلی‌لری ، ډېره استــفاده پــه کښــې حاصلېږی ، هر چه په دا هنر کښې‌فوقیت لری بلاغت لری . په سیاه چشمو کښې بهتر شنقار دی ، بیاشاهین آموخته کـول دواړو سیــاه چشمو په یوه شان دی . په دلبه بلل‌شی آب داره ورکوله شی ، چه آب داره سپینه بې وینو په اوبو وللې‌وی هومره بهتر دباری آبداره ډېره سپینه نه بویه ، تازه په یوه ځل لکه‌باز چه څورب وی غوښه یې کوزوله شی ، هغه هسی په‌اوبه لمده آب‌داره‌دباری بویه چرغ په واړو کښې زر آموخته شی ، دلاور رند مرغه دی، څورب ښه نه دی . چه یوه ذره په ګوشت زیات شی نو بی وفایې کا ،شب بیداری ډېره غواړی . که دادوه کار یې په ځای وی په ښکار تقصیرنه کا ، آشیانی هوسی نــیسی ، داسی زاڼی ، قاز هره باولی ، چــه‌ورکړې هغه نیسی . ځاړی هم ښه

نیسی اما پلولړې کا ، ورپسی ورك‌شی . شنقار هم د چرغ د ذات دی
اما لکه سپین باز کم یاب دی تـر سپین باز یې قیمت ډېر دی . لګړهم
د چرغ د ګرونه دی ، تر متی علیحده‌دی ، باری شاهین سره یو ګروه
دی . باری ددریای شور په جزیرو کښې دا ګروه د چندن په‌ونو جاله‌کا،
شاهین په غرونو کښې جاله کا ،شاهین آشیانی بهتر دی او پـیدا
کېږی . باری خو دامی وی . داواړه‌مرغونه چه یاد شول پکښې بادشاه
باز دی . دانور په پټی سترګې‌ساتل‌شی ، دده دا شرف کافی دی چه په
وازې سترګـې ساتـه شی . لکـه‌مصاحب د سړی سره په هسی‌شان
مالوف شی ، په مصاحبت یې‌موصوف‌شی . آموخته کول یې په دوه شان
دی . یو چه اول ونیوه شی تماغه یې‌په سر کړه . تمام ژمې یې په‌ښه‌روش
په ګرم ځای کښې وساته ښی ښی‌الوان طعمی ورکوی . چه تحویل د
حوت شی ، هاله یې واخلی ، په‌پهرو‌په دست کښې کښې باسی تماغه‌یې
ورو ورو له سره واخلی ، آموخته‌یې کړی . په حمل کښې چه میاشت د
نوروز شی یو څو لاسه یې سیر کړی‌په کوړېزیې کښېنوی ، چه‌تر کوړېزه
ووزی په تحویل د میزان یـې لـه‌کوړېزه واخلی تیاری . درست ژمې
تر آخر بهار په تحویل د ثور پرې‌خاطر خواه ښکار کړی . دا شان چه
وساته‌شی آموخته‌شی، آموخته کول‌دباز هم دادی . بل رنګ که حرص
د ښکار لری حرصناك وی یا بازدښکار نه لری . محتاج وی . پـه
میزان کښې نیولی باز چه پیشنګ‌وی تماغه دی نه ورکوی . په مزیو
کښې دې پرانزی اول دې یو څوپیره‌ورکا ، بیا دې یې په شپه سترګی
چراغ وته پرانزی .

چه‌سړی پری‌ووینی. چه‌په‌شپه‌رام شو په ورځ دې هم ورو وروچهی
ورکوی ، تمام مزی دی ، په شلم په‌پنځه ویشتمه ورځ لرکا ، په چرګ
دې یې بولی ، چه ښه په چرګ تیارشی ، تراه یې ورك شی نور دې
ښکار لره یوسې ، یـو یولاس دې‌پری نیسی . سیر کوی دې ، یوه
ورځ په چرګ بلل دارو در مل صافی‌مافی دې هیڅ نه ورکوی مګر پرمهر
ددال چینی سره په دریم څلورم دې‌ورکوی . چوزباز په دارو آموختـه
نه وی په صافی آموخته نه وی ،خپل جوش د مرغی والی ډېر لری‌چه
صاف‌یې کا ، دارو ورکا ، ضایع‌شی.هرګاه چه خوی بوی د سړیو واخلی
بیا هاله چه تاب طاقت پیدا کا ،صافی او دارو ورکول رخصت دی.
د باز خوی دې اوګوری که خوش‌فعل‌نیك ذات وی په پهرو کښې دې ،
ډېر نه خوا روی . او که نه مرغـی‌چوز باز په پهرو کښې څکه خوار
شی . تر ابتدا دآموخته کول تـرانتها دې . نور یـو یـو شپه دې
آسایش ورکوی ، مګر که بد فعل‌وی ، سختی لری په غوښه دې هـم

نه هسکوی . دوی چه په طعمه‌حریص‌طلب کار وی هر کله چه آموخته‌شی،
والوزی فعل یې‌معلوم شی . په موافق‌دې ځر باوه شی . داشان آموخته
کول خو هم د پښنګك باز چه پـه‌تحویل د میزان ونیول شی د هغـه
په باب حکم دی . او که نه په‌تحویل‌د عقرب په تحویل د قوس چه ونیول
شی هغه دې واړه په تماغـه کښې‌کښېنول شی ، چه ژمی ووزی پـه
تحویل د حوت لکه پاس وکښنل شول‌هغه هسی دې آموخته کا ، که په
ساړه کښې یې آموخته کوی بې‌دګی‌به پاته نه شی دا کار د میر ښکاری
د هنره بعید دی . هغه به نـامیـرښکاری وی چه باز په دا هسی بی
وخته آموخته کوی . هغه چه په‌میزان‌دپښنګك باز رخصت د آموخته‌کولو
دی په دوه سببه یو د میزان هـوامعتدله ده تر ساړه پوری بازځان‌ورته
ونیسی ، بل دا چه لامرغی وی ژرآموخته شی او که نه بهتر اولی خو
دادی چه هغه هم وساته شی . نورهر کله چه باز ته صافی ورکوله‌شی
مالګه نیم د مـړی نبات دری نـیم‌دمړیه ، په داوزن دې وی ، تـر دا
حساب دې زیات وکم نه وی . په دااتمه برخه‌مالګه‌اوه‌برخی‌نبات کیږی.
نبات دې ډېر صاف‌سپین‌پاکیزه‌نبات‌وی ، مالګه هم هسی چه مخ پکښې
ښکاریږی سندی صافه مالګه دې‌وی ، هر وخت چه دباز کج خلقی ،
بد مستی ووینی ، که په هره‌میاشت‌یې دا هسی سپك په داوزن صاف
کوی ، صافی ورکـوی عیب بـدی‌نشته ، مګر په تلخه ځله چه احتیاج
بویه که باز طعمه وجار باسی که‌تازه‌وخوری ویې جار باسی عیب چندان

نشته هغه خو دې وږی کا ، چه ښه‌طلبګارشی یوه دوه مرغی طعمه دې
ورکا ، بله ورځ څه زیات په دویمه‌دریمه ورځ دې پخپله طعمه راولی.
بل هغه چـه طعمه باسی کا وده ته‌نه یې‌بدبویه را وجار باسی داد باد
دهوا تاثیر دی ، دابد علت دی دهلم‌تخم ستوه سونه ، دواړه سره دې
برابر اوړه کا ، ګبینه سره دې خلط‌کا چه ښه د ګبینه سره خلط شـی
په مقدار د پسته مغز دې ګولی‌وتړی.په وخت د سبا یوه ګوله دې بـاز
وحلق و ته واچوی .

هر کله چه طلبګار د خوراك‌شی‌یوه مرغی دې ورکا ، که یی هضم
کا نور خاطر جمع دې بله ورځ ورووړو یوه یوه مرغی ، دوه دوه زیاتوی
چه پخپله طعمه رایشی . بل دطعمی‌جار ویستل دګرد آلودی هوا په‌سبب
دساړه په سبب په ژمې کېږی . دابدزحمت دی . سفید مرګك سیاه‌پیخال
باله شی ، پیخال تور لوغړن کـا ،د اوبو طلب ډېر کا ، مښوکه‌کوزه‌کا،
اوبه غواړی نادان میر ښکار او به‌ورکوی ، دی یې چښی . که طعمه
وخوری هم یې نه ځروی ، دابدزحمت‌دی .

په یوه کال د مادولس دیارلس باز چوزخانه کوریز پـه دا زحمت ومړل ، ډیر علاج یې دباز نامی په‌حکم وکړ شو اما کار ګر نه شو ، پخپل اجتهاد می سنګتـا روغ کـړورمی کړ پس مانده بازونه خدای پاتی کړل ، سنګتا په دا شان وه چه‌د صحرا زاړه غوښنا یه ټول کـړل شول اور پری ولګاوه شو ، کودی‌ډیجی آب‌نارسیده پکښې واچول‌شول نبات ، لونګ میده کړی د سرو اوبوسره یوه شیر شایی یا خوزیات کم واچول شول ، کسیره مقدار وزن دهلك‌پیشاب هم ورسره ګډ ـ هغه تاوده کودی داوره وکښل شول ،هغه اوبه پرې داغ کولـی شـوی ، په شپږ اوه کودی چه او به پخـی‌شوی نور تر لته می صافی کړی، په ښبیښه کښې می واچولی . بازته په‌سبا بیګا هر وخت چه داوبو طلب به یې وکړ ورکولی به شوې ، تندی‌اوبه ډیره لری که په دا سبب به‌یې نه‌چښی ، نوری اوبه به ورسره‌ګډې‌شوی ، هر رنګ به یې چه چښې شوی ، هغه هسی به ورکولی شوی.مجرب د اعلاج ښه دی په ژمې د باز ددومی ، دزکام دنزلی هم بد کشنده‌زحمت دی . سو ږمې ونیوی شی ، دمه وهی . په ګرم تاریك ځای کښې‌دی وترل شی ، ورځ شپه دی سکاره په هغه ځای کښې دوی (۱) چه دحمام غوندی ګرم وی .

بـادنـور درومـی طعمه‌دی دحلوان ورکوی . د غوالینګی دې‌ورته نیسی ، چه په زور زور یې شلوی .خراشکی د بلغم یې ووځی ، بلکـه ځبیبښی دی . دمـهوړی مرغونه دې‌واخلی اوبه دې نچوړ کا ، په سوږمو کښې دې وڅاخوی ، په حلق په تالودې هم وموږی ، په څو ورځی که په دا صحت وشوو شو او که نه دهنګوناس دې ورکا ، یا دې اهوری کلیه ګرم ځای او لینګی د غواشلول‌شاید چه روغ شی . څو ښه روغ نه شی پخپله طعمه ، غشی تمام را نه‌یشی . پیخال اندازی اوږده نه شی؛ هومره دې دهغه ګرم ځایه‌ورچانی نه‌وباسی . دباز هر علت زحمت چـه وشی ګوښه تاریك ځای ورلره بویه‌چه نه پر کیږی . د باز تیز پری په سیسی په بتیری‌ښکاره شی . معراج‌یې ځاړی دی ، مرغاوی ، سرخاب ، تارو ، زر که دایی ملك دی . قازوکلنګ پرې نیول نه بویـه . داد شاهین د بازی د چرغ په ښکاردی.په زرکو باندې باز چه ترینالك کـه کوریزوی . ښه الوزی اول کریـزه‌ترینالك نیژدو وچوز بازوتـه دی . لامرغی یې کړی نه وی د فرزندوداد نه لری دوه کریزه دری کریزه تر مرغو تیر دی ، چندان په‌کارنه‌دی.بازونه په ډیر رنګه دی .

(۱) کټ مټ نقل شو مګرښایې‌چه ( دو دوی یا تو دوی ) وی .

اه دسوات د ملك بازونـو — رنګا رنګک په ډېر رنګونو
چه به لوی پکښې په ځانؤ — هم هغه د خوشحال خان ؤ
توره سیاه پښت توره‌یې ژبه — پسی روح ځی لـه قالبـه
باز هـغه اخلـه مشتـاق — چې نیول شی په دوه طـاق
یا په تلـه کښې را غلـی — یا پـه قوس کښې نیولـی
باز همه واړه پـه کار دی — ولی دوه ذاتـه سر دار دی
یو تیغون چه بی بدل دې — دویـم قیر چه دده مـل دی
هلك سر اوږ ده یی غاړه — تیز پری لـه هغـه غـواړه
خلتـه دم لنډه لکـی یې — ښکار د چرغ کا د بحـری
باز جره چه په رنګک‌سوروی — هغه لازړه ور بـاتـور وی
ښه جره د ښه باز کار کـا — ښه بابښه د جره ښکار کـا

ډېر دارو بازو جره وشاهینو هر ځانور دورکولونه دی ، په دارو کښې زیان مومی ، مګر ضرور شی،زحمت یې څرګند شی هانه دې په موجب د باز نامی د هر رنځ علاج کا،اما جانور چه تند رست وی دا رونه ورکول بویه مګر د ساړه دپاره یاداشتها دپاره د اشتها دپاره به ترپر مهری څه نشته لکه ذکر شوه پـه‌ساړه دې د لونګك دار چینی سره ورکوی ، په ژمې ، پس په منې په‌اوړی د لونګك وخت نه وی ، د مرچ سره، یادسونه‌سره یومرچ دمرچ په‌مقدارسونه‌کله‌هغه‌کله هغه‌په بهارهم. دادېړی تریخی لکه دږدنو دانه سباسبا دښکار په ورځ هم نفع لری .

د هوا زدګی ، د ساړه به‌یې‌امن وی ، مو میایی مشك خود باز لازمی‌وی دموټ ددانې برابر مومیایی،دوه موټه مشك ـ دغشی‌ښکار دباز دشاهین وغیره چه ځنګل دارمرغونه‌دی داښکار که زخمی شی پیا پـې ورپسی ورسیږی که دم یې ختلی‌وی‌هم په روایت حلال وی خوړلی بویه. تکبیرپکښې‌شرط دی . دښکاردغوښوخوراك ثواب دی څوك وایي‌چه دښکار ورځی په عمر شمارلی نه دی داخبره‌دافراط هوس دمخه وه ګنه ما پـه کتاب کښې‌لیدلی‌نه‌ده . دامی‌لیدلی‌دی‌چه پیغمبرانو اولیا ګانو ښکار کړی دی ، ثواب‌یی ډېر دی ، پس‌له‌دیـوښکارونو چه مسطور شول د ماهی ښکار هم ښه دی اما دا نور ددام‌دجال چه مرغونه نیسی سهل ښکار دی بلکه د طعن د پیغور ښکار دی .

## نهم هنر د شجاعت

دا هنر په دوه خیزه تعلق لری یوپه ځای، جبلی جوهر، دلاوری بل‌په

استعمال، په کسب، په زده کول،تردا هنره نه‌بل لوی هنر په‌جهان‌نشته
پیغمبر صلی الله علیه‌وسلم چه تمام عقل علم دده‌په‌سینهٔ بـې کینه کښی
ځای ۋ ، اعجاز یی چه فرمایل هسی کیدل . نمراو ځمـکه یی په‌اعجازکښی
په‌حکم په‌فرمان ۋ، مدت یی دعوت وکـړ عالم پری هومره و نه گـروهیده
څویی توره وربنکاره کړه . الجنة تحت ظلال السیوف جنت دتوروترسایه
لاندی دی چه آیت‌دسیف‌پری‌نازل‌شواقتلو المشرکین کافة ط ها له یې چه
توره واخیسته جهان یی دکفرله لوث پاک‌کړـ جهان په‌دوه توکه انتظام
اوقوام لری په‌علم‌په‌توره ، که‌توره نه وی علم بی‌قوت دی، قوت‌یی‌توره‌دی
د علم ښښتن محتاج دتورې دښښتن دی ـ دتـورې ښښتن محتاج دعـلم
دښښتن دی ـ ښه‌ځوانان هغه‌دی چه‌دواړه توکـه‌لری ـ په‌یوه‌لاس کـتاب
پـه بل لاس توره . ددی جـهان په‌دولت د هغه جهان دولت حاصل کا
د شجاعت بخره اول د پیغمبرانو ده‌بیا د پیرانو ده واړه پیغمبران مړنی
ووتر واړو نه مړنی محمد رسوالله‌ۋـ ده د شجـاعـت تـأ ثیر ۋ چـه
اصحاب یـې مړنی وو ـ دامقرردی.
چه‌سردار یې مړنی‌وی لښکریې مړنی‌وی ـ پس‌له‌اصحابو تابعین مړنی‌وو
بیاتبع تابعین ، ترالی یوم‌الدین پوری به داشجاعت دمحمدرسول‌الله‌صلی‌الله
علیهٔ وسلم په‌امت کښی چلیږی ـ دکافرانو شجاعت که‌شته هغه‌دشجاعت
سره شمارلی نه دی ـ خربشوی ، لیوه داړل کا، ځان وژنی ـ شجاعت
هغه دی چه په امر دخدای موافق دخدای له کتاب وی. چه ددې شجاعت
ښښتن به بهشت جاودان لره ځی ،دهغه چه برخـلاف وی نیران‌لره‌ځی.

بیت

شجاعت زدانا بود دلپذیر        که نادان زکشتن ندارد گزیر

دا شجاعت چـه موافق په شرع وی ستوده بالـه شی، چه برخلاف وی
نا ستوده باله شی ـ دستوده دناستوده شجاعت بیان ډیرډیـردی.په دا
مختصر کتاب کښی گنجایش نه لری ـ هومره زده کړه چه اول‌شجاعت
ستوده دغه دی چه له دارالحرب کافر سره شی په حکم دامیر،چه په‌ناحق
څوک په چاباندې ورشی په‌تاراج دمال دسر ـ بل له‌باغی سره په حکم
دخلیفه، خلیفه هغه باله شی چه په‌اتفاق خلق دده اطاعت قبول‌کا،موافق
په‌شرع‌کار کا ـ دخراجی ځمکی خراج اخلی، دعشری ځمکی‌عشر پـه
ظلم په ستم په داکار کښی راضی نه‌وی ـ که دخراجی ځمکی تـرنصف
پورې خراج اخلی ظلم نه‌دی، که تر نصف زیات اخلی ظلم‌ستم دی. هغه
مسلمانان چه دکافرانو سره غزاکااو جهادکا دهغو خـــراج معاف دی
وهغو ته ، په‌شرط دآلات‌داسباب محار بات، بلکه خلیفه دې‌ورسره‌نورامداد

او معاونت کا .که خلیفه داسلوک مسلوک نه‌لری، هغو لره روغ دی چه خپل امیر ونیسی ، دکافرانو سره‌جهاد کا ــ دولس زره ځوانان شرط دی چه حکم پکښی نافذ لری، هغه امیردی ــ باغی هغه باله‌شی‌چه‌په خپل جهل غرور ضایع شوی وی ــ نه امیر لری نه دخلیفه حکم منی، مال‌دخراج نه ورکوی ، ضمیمه په دار هزنی .قطاع طریقی کا . ددی هسی باغی‌په ځینو روایتونو سر مال روغ دی ــ‌په داکار کښې دماډیره شبه‌وه ــ عالم العلما مولا ناعبدالحکیم سیالکوټی می‌پخپله وپوښتیده، لکه مسطور شول. گویا چه دده دژبی ده په تمام ممالک هندی حکم دخراج وکړ، چه‌عشری نه‌دی خراجی دی. دساعت شبه می‌هم‌وه، راته یې‌ووې چه ساعت شته‌که داهسی نه وی سرور عالم به دسفر دپاره پنجشنبه، دوشنبه اختیار کړې

نه‌وه ــ دابزرگی ورځی پیش دعیدین، دجمعه، شب قدر، شب برات‌داچه مخصوص شوی ساعت ــعلم نجوم هم شته که چازده کړی. داهم‌زده‌کړه چه‌دشجاعت په کار کښی واړه سړی برابرنه دی‌لکه‌باز، مزری، مار،سړی داځلور توکه یومثال لری ــ که (۱)دباز سره جفت شوشهباز راوړی،هم په مړانه هم په خوی په اصالت په هرڅه کښی آراسته‌وی . که‌چرغ، لکړ تپوس ، کار گه ، بلابو غمه داهسی‌مرغونه ورسره جفت شی هم دهغوپه مزاج یې راوړی . مزری هم که مزری ورسره جفت شی شیر شرزه‌راوړی. که‌پړانگ، لیوه،کفتار، شغال‌ورسره جفت شی ببر، بلابتر، په‌رنگ‌مزری بتر ترگیدړراوړی ــ مارهم داهسی‌صفت لری که تور ماردزیږ مارسره جفت شی یادسپین پتر ماری سره‌هغه هسی راوړی . دمارونورنگو نه

مختلف په داسبب دی چه په یوه ملک کښی په‌ډیررنگ مارونه لیدل‌شی لکه‌درنگ تفاوت دی تفاوت‌یې دزهروهم په‌داشان‌دی ــ دسړیو کار پــه دارنگ‌دی، له‌ښوغوښوښه ښورواوی،چه‌اصل نسب‌دچاؤ بله‌ته وشوریږی هسی نور کارونه د خوی خصلت هم وبله تــه تبدیــل بیامومی ، په‌فطرت کښې کجی پیداشی ــ که یوه توری‌وینځه حبشی‌یاهندی یامغل یاپښتون ترځان لاندی کا ، امتحان تجربه ددې‌کار شوې ده چه اولادیې که وپلاروته شی، سور سپین پیدا شی، که موروته شی تورسیاه فــام پیداشی.لکه تفاوت درنگ دی هسی دخوی خصلت وی ــ یاهغه تور فرزند دموروپه‌رنگ دپلار په خوی شی ــ یا سپین فرزند دپلار په خوی‌شی یاپه رنگ په‌خوی

(۱) په اصل کښې دغه شان‌دی خو داسی ښکاری چه په سر کښې د (باز) کلمه پاتی ده یعنی بازی .

هرڅه سره و مورته شي یا واړه دپلار شي ـ تر پیړیو پورې داکار پکښې چلیږي په ولایت دعراق رسالې دآسونو دګلوشته، پشت په پشت اسونه سره په یاد داشت کښې، نتاج یې سره نه ګډوي ـ دلویه اصل اس په کمینه ګله چه ګډ کاچه ایغروته راوړي، ښه اس پیداشي. چه موروته شي، هغه اصل چه وي هسې پاتې شي . دناپکارو اسپونه په سبب دښه ایغر ښه اسونه پیداشي. دښواسپونه چه ایغر یې زبون وي بداس پیداشي، خرچه په اسپه وخیژي کچر پیداشي. په داکار کښې شک شبه پاتې نه ده ځکه په شرع کښې کفو لازم شو ـ په تاریخ روضة الصفا د چنګیز خان په احوال کښې مې ولیدل چه هرګز یې په خپل اصل نسل بل ذات نه ګډاوه ـ خو هم د خپله ذاته ودونه ، عورتی به یې خپل اولادو ته کولې، دوسو تېرسو کاله یې سلطنت په اولاد بې خلل و چلیده .

اتفاق یې په اولاد کښې ؤ . یوبه بادشاهؤ هغه نوربه په اخلاص دده دولت خواه وو . دملکو نو مهمونه، کارونه، خدمتونه به یې ورته کول ـ دهند بادشاه یوه صاحب حسنه ښځه ورستوله دحسن په اعتبار یې داخله په محل کړه، فرزند ورځنی وشو. نورو ترکانو ورته وې چه ستاسې په اولاد بل اصل ګډشوی نه دئ تاداهسې وکړل ـ ده وې چه اوس پښیمان یم، ولې وشوه څه کړم ـ هغه فرزندیې لوی شو، خوچه لوی شو نوریې نفاق آغاز کړ ـ کل شئ یرجع الی اصله ـ که نفاق پکښې واقع شو هسې دولت برباد شو .

**مثنوی**

چه تبار سره ویزار شي — سره واړه تبار خوار شي
د نیستۍ سر نفاق دی — د هستۍ اتفاق دی
چه دولت ګټي وفاق دی — چه دولت څټي نفاق دی
چه خپل کور سره یکدل وي — چه پرې بلوسي حد دبل وي

دامې هم اورېدل چه جلال الدین دپیرروښان یوه بنګښه وکړه روښانیو ورته وې چه بدې وکړل . بنګښ په خوی کښې سپک دی، ننګ ناموس دافغانی نه لري ـ دمغلوشورواخواره دی که فرزند دې وشي دبنګښ په بوی به وي، دمغلوشوروا خوربه شي . الله داد وزو آخر دمغلوشوروا خور شو. دروښا نیو وینا رشتیا ـ غرض چه څو ممکن وي ملوکان دې خپل نسل دبل اصل نه ګډوي. که یې ګډ کا ، که فرزندلکه بیان وشو ایغروته وشو خوښه اوکه نه قباحت لري. دشجاعت په کار کښې اول خو د ملوکانو چه طایفه دشجاعت هم دوی دی ، خودا اعبار دخالص نسب دی، بیا کسب دی ـ چه

زده کول دشجاعت دکسب لازم دی ـ دبازمرغی چه اول له جالي والوزی، اول مور پلار وته تارو ، تمځری وغیره ښکار و نیسی ژو ندی پر کوټ کا ، ورته يې پریږدی چه هغه ونیسی ښه پرې ګیراشی بیایې ری شاه (۱) دتارو دزرکی وکاږی ، ورته يې پرېږدی چه والوزی ويې نیسی، بیاهسی هسی دځان سره بل کا، غوټې ورته د ښکار ښیی چه ښکار زده کانور د مور د پلارنه بېل شی ، په خپل سر ښکار کا

آشیانی شاهین په خپله لیدل شی چه باولی ورکړشی هاله ښکار نیسی. مر کوهلی مې لیدل چه چابه راوړل هلك مې به لوی کړل بیامی به پرېښول چه په کارنه دی درومی دیوبه ښکار نه زده ؤ، لاړل به هیڅ بهیې نیولی نه شول ، وږی خوار حیران بهراغله،دقوشخانې په ګوټ په دېوال بهناست وو . بازدارانو به غوښې درواچولې،هغه بهیې خوړې ، ترمدت بهداهسی ګرځېدل، هیڅ بهیې نیوی نهشول . مزری، پړانګ، لېوههم په داروش خپل نتاج آموخته کوی ـ تازی سپی هم پهداروش ـ کههر ښوښه اصل تازی وی ښوښکاری نهشی په کارنه وی ـ بلکه کهکوټه سپی وی، چه ښکاری شی په کار شی د هنر پهزور کار ګه هم آموخته شی چه ښکار کامدار په کسب په زده کول دی ـ اګر چه جوهر ذاتیفطرتجبلی لازمامازده کول لازم ترهر ګاه چهکسب دشجاعت ثابت شو،چه شجاعت

په زده کول سره مونده شی ځکه هغو چهکسب دعلم دشجاعت لهلاسه واچاوه محروم نه دی کاره پاتې شی . که هرڅوجبلی نخښه پکښی پرته وی، کسببویه. که درې خلور وروڼه دیوه پلاره دیوه موره کان پهکان تورزن وی یو پکښې د تورو کسبپهلاس ونیسی غشی زده کا ، سورلی زده کا، دجنګ دترددعلم . دسپاګریواړه زده کا ـ هغه به هغه موروثی دپلار کار په لاس ونیسی ـ بل که داهنر پر یږدی یو کمین کسب پهلاس واخلی، جولایانداف داهنر زدهکا، دغشی، دتورې، دسورلی، دجنګ علم ورځنی پاتې شی، په میدان کهدواړه وروڼه وبله ورشی کههرڅو پهاعتبار دفطرت جبلی دواړه سره برابر وی همدا علم دسپاه ګری زده کړیوی دابل بهپه زمان ابتهکا . که هغه بل وروریې لرډیر موروثی علم زدهکړی وی، نور ورته شاکا ناقص پاتیشی . همدده مخی نهدی، څهشو کههرت

(۱) کټ مټ نقل شو خوښایی (ریشه) وی

پرت بیهوده لافی کا . سکه مدار دشجاعت په کسب په زده کول شولکه کوټه سپی چه ښکـار زده کاپه کار شی . هسی درود گر ، کمانگر ، هندو بقال که دشجاعت کسب واخلی پهدا کار کښی به په کارشی .
یعقوب لیث درودگرؤ . چه داکسب یې واخیست بادشاه شو ـ اماچه پهارث ددې کسب څښتن وی دهغه کار افضل دی . کهدا پهجنګ کښی شاکا نفرین یې په پلارپه نیکه وایه شی :
دهغو وایه نهشی، پهداواسطه مرګ ورته آسانشی، شرم ورته دپلاردنیکه دقبیلې ګران شی، ځان ووژنی، هغه بل وتښتی یانه تښتی ـ ځان پهغوولی په ښاغلی په هرچا ګران وی، ولی ښاغلی لهشرم ترځان تیریږی. چه پهفطرت په کسب کښې په اعتباردارث پهداکارکښې جوړوی هغه بههیځکله په داکار خطاو نهخوری که پهفطرت چه په نسل یې بل اصل ګډوی یاپه کسب پهاستعمال کښی کمی وی، لههغه بهالبته کمی شی . له ښه پلاره لهښې مورنه بـهخدای بداولاد پیدانه کا .

**مصراع**

**شیر بچه همی ماند بدو**

دښو غوښو ښه ښورواوی ـ هرچه فطرت جوهری پهداهنرکښی موروثی وی، کسب هنری هم حاصل کاودې کاروته آراسته شی .
بیااستعمال دجنګ دی، څو جنګونه ډیروکاهومره په تجربه کښیپخته کیږی اما :

**قطعه**

مرد خرد مند هنر پیشه را ‌‌‌‌ ‌ عمر دوبائیست درین روزګار
تابه یکی تجربه آموختی ‌‌ ‌ بادګری تجربه بردې بـکار

څوپه ځان تجربه ددی کارپه ډیروجنګونوزده کادوه عمربویه چهپهیوه کښی تجربه زده کا په بل عمر کښې کارکا . دوه عمره پهجهان کښې دچـا نه وی .

**مصراع :**

دوباره نیست کس را زندګانی

دوهعمره په معنی داوی چـه دهغو په سردا کـارونه تیروی، دهغو پند نصیحت واخلی. خوګنه هغه عمریې خپل شو، پهخپل عمر دهغه کارونه کاندی . ډیر کتابونه تواریخونه شتهچهواړه له دې باب دی چه څوك یې

ګوري، هغه هسي‌شان لکه چاکړي‌دي، دچاترسرتېردي، ديوهم هغه‌هسي عمل کا ـ شاهنامه فردوسي طوسي‌تما مه هم داده ـ

**بيت**

هرآنکس که شاه نامه خواني کند اګرزن‌بود پهلواني کند

تاريخونه دې ګوري‌هسي دې کـا ـ په دامختصر کښې ثو ګنجايش دی ترسره مي تېردي په‌کار ، مجمل به ووايم اول داچه جنګ په‌ډېر رنګه‌کيږي فن ، هنر ، حکمت دروه درب ، دروغ ، رښتياچه‌په څه‌رنګ‌فتح‌مونده‌شي غليم‌ما تېږي، هغه واړه په جنګ کښي روغ‌دي .

مردبويه خپل‌کار په غليم دپاسه‌کا، مګرعهد شکني چه‌يمن نه‌لري مذکور به‌يې راشي . درې وجه دجنګ‌لوي وجه دي، يوصف جنګي، بل قزاقي‌بل شبخون . په صف جنګي کښي تيښته حرامه‌ده . مګرپه‌يوه‌نري‌عمل‌ددې کسب جايز شمارل هغه دي‌په دابه معلوم‌شي .

ترصف جنګي نه جنګ بهتر دقزاقۍ دی . دقزاقۍ جنګ غليم کش دی دځان‌محافظت پکښي احتمال لري‌ـقزاقي دترکستان‌دملوکانوپا څېدلې‌ده په‌تر کانوکښي يوه طايفه‌ده قزاق نومي، ډېر بهادران دي، قزاقي دهغوده. اصل شجاعت هغه دي چه په قزاقي کښي زده‌شي . قزاقي په يوه‌سواره په‌دوه ، په لس په‌شل، په‌سل، په‌زره‌په‌لس‌زره په‌شل‌زره‌هم شي. په‌ظفر نامه کښي چه تمام دامير تيمور احوال دی تاليف‌دمولانا شريف‌الدين‌يزدي

عجب نګارش دامير دقزاقۍ دترددپکښي شته، آفرين وربانديې . دشيرشاه سور احوال هم په داوتيره ـ ابتدا دهرچادکار مدارچه داعيه لري په‌قزاقۍ دی ـ ډېروڅوانانو ښه تلاشونه کړي دي . دوه‌کـاره دقزاقۍ لازمه دي يوښه اسونه، بل غشي ، دښواسونوپه زورد غشيو په‌زوربه لږ سواره‌هم مسخر په عالم‌شي ـ برګستان اوډېرسلاح په‌قزاقۍ کښي نه‌بويه، يوه‌زغره

ډکه درسته که کيجم وړتګ وي ،ګنه‌خالي‌اس‌بي‌تکلفه، زين‌مشکي‌چاکل توښه کم‌وبيشه ورڅخه نور هيڅ ـتفچکي (۱) په ښه‌آس سوروي اعلی څود جنګ استعمال او هنردي واړه په قزاقۍ کښي زده‌شي ـ دشبخون

(۱) کټ مټ نقل شو مګرښايې‌توپك چی وي .

کار ، دصف جنګی هم په دا کښېزده کا. ازبکد قراقۍ په زور په درې
قسمه دجنګ بلکه زیات په‌هرچادی ــ دهندوستان دسپاه، دروم قزاقۍ
کمه‌ده . داعلم خود ترکستان دعالم دی ــ ځکه په‌ځله ددوی غلبه استیلاپه
تمام ربع‌مسکون په هفت اقلیم‌وشوه.اول دآغورخان (۱) په وخت ، بیا
دفریدون په عهدبیادافراسیاب په‌آوان‌بیاد چنګیزخان‌په‌هنګام بیادتیمورپه
زمان څه لانور تردامنځ غالب‌راغلی دی . دقزاقۍ پیشه ددکن برکی هم‌لری
چه غشی‌نه لری، په نیزه جنګ کا، برکت یې نشته ــ دقزاقۍ مړانه‌داده
چه‌په غلیم راشی، یک‌دله‌وربا‌ندی مځ‌یک‌جلب وکړه ــ که‌زبون دی دهمه
بیخ بنیادیې وکاږه !

اوکه‌نه حمایت‌یې پیدا شویادربا‌ندی زوروز،هسی ورځنی‌ځان وشلوه
چه‌ګردهم نه وینی ــ دقزاقۍ مړانه‌په تیښته اودیار اودځان په‌ساتل‌کښی
ده . بیا چه نن ولاړ شوې وغلیم‌ته‌وارنه‌ورکوی،په څومه ورځ بیاورته
حاضرشی . په داکښی حفظ دځان خریزمان په غلیم شی ــ که هرڅوسخت
غلیم‌وی ورته په سر ګردانۍ حیران‌شی، ورته نرم شی ــ بل‌چه شبخون
وی‌که ورتله په غلیم په لښکر کېږی سل زره په داکار کښی سره‌برابروی
یوه پاره عالم دې په بل لوری‌زغ‌کا ، نقاره یا اوریا غو غا چه
غلیم مقید په هغه لوری شی‌په بل لوری دی دا ډیر عالم
درآمد پکښی وکا، مځ دی دسردار په ډیره کا، که بخت یی وی تدبیر

به یی دتقدیر سره برابرشی‌ــ سردار به‌یی آسان په لاس کښیوزی، نور
لښکربه یی په‌ځای په‌خپلو ډیرو ناست وی، غم به دځان کا‌ــ دوی
به دسردار سره دلاسه‌کا‌ــ داقصد زور ور قصددی چه تمام اختیاریی
جوړوی، ترځان تیرشی داقصد به‌کا ځان‌دی‌ښه ترزغروترجیبۍ لاندی‌کا‌ــ
دتېرو دوهلو په قراردادی وربا‌ندی وخوځی، که سواره وی‌هم دی پلی
شی، که سوبه فتح یی وکړه. که هرڅوورانه وی‌هم په شپه، خوچه

دلښکره ووزی، که نه په‌خپل کور کښی دی ناست وی. که دسردار
قصدیی نه وی په لښکرو دی نه ګډیږی، له ورایه دغشو دټوپکو شیبی
دی پری‌کا، ځان‌دی سپك ورته‌جوړ لری‌ــ که لښکری وخوځاوه‌هرقابویی
چه جوړیږی هسی ترددی ورسره کا‌ــ که غلیم یی غرشو ځان دی
غلط کا‌ــ په هرحال دشبخون ترزیان نه یی‌سود ډیردی یوغلیم ترځان

(۱) دلنه‌آغورخان اول‌راغلی‌دی مګربایدفریدون‌اوافراسیاب‌اوچنګیزدمخه‌وی.

مشروی یوکشر، مشر هغه چه ترتاقوت دلښکر دسامان زیات لری دهغه
سره خوپه شبخون اوپه قزاقی اوپه هنر په حکمت مقاتله اوکار بـویه۔
چه ترتاکشروی، دهغه نه حزم احتیاط .

## مصراع :

دشمن نتوان حقیر وبیچاره شمرد .

دترکستان په ولایت په شبخون ډیر مقیدوی. هنر حکمت‌دجنګونو
ډیروی. شبخون هم لوی حکمت دی۔ په شبخون کښې لوی ایغراسونه
هنګی دګلونه بیل کا، ورسره یی بیایی خوچه په شپه‌و لښکروته نژدی
شی، دیوه لوریه ایغراسونه ورپریږدی، په لښکر چه ورګډ شی داسپو
بوی واخلی، نوردلښکر داسونو سره په جنګ شی، یوه غوغا په لښکر
سازه کا ـ دبله‌لوری ځوانان په‌لښکرورګډ شی ، بلاپه لښکر سازه کا ـ
بل داچه لوی لوی مست غوایه ورسره بیایی، وچی څرمنی داس پوست
یادغوایه داهم ورسره وری وری.خوچه ولښکروته‌نژدی شی‌هغه‌پوستونه
دغویو په لکی پوری محکم وتړی، غوایه په کناټیوپه تورو سره، سره‌کا
چه سره‌شی، غوایه مخ په لښـکرو دنـګیږی، دوینوبوی دغوایو، درزا

دپوستونو کړکړ کا ددرست لښکر اسونه وترهیږی، دبله لوریه ځوانان
پری ګډشی درست مسخرکـا ـ دشبخون ډیربندونه دی‌چه کنـګاشی
ترجنګونو تیر ځوانان یی‌کـاندی. شبخون چه بیـګانه لښکراول دچاپه
ملك ورشی، خوداولی شپی بهتر دی چه لاپه ملك آشنا نه وی، بی‌زړه
په واهمه‌وی اوکه نه چه ښه زړه ورشی هـاله دصلح دصلاح په‌خبرو
وغولاوه شی، چه ملایی پرانته شی په څوکی‌په پیره بی‌غمه شی، هاله
بویه خطونه په دروغ استول۔ ځواب سوال په دروغ دجنګ په کارکښی
روغ‌دی۔ څولاقول عهدشوی نه وی، هردروه درب چه کارخصت دشرع
دی۔ اماچه قول‌عهد وبله موکدشی نورمحکمی په قول بویه۔ سردی‌ځی
قول دی‌نه‌ځی. په شرع اوپه عرف په عادت بی‌قولی رسوایی اوفضیحتی
ده. په‌دی باب حدیث وارد شوی دی چه پنځه بلاپه سړی په پنځه توکه
نازلی‌کیږی۔ یوچه بی‌قوله وی نقض عهدکا، ددښمن په بلا به‌ګرفتارشی،
دښمن به پری غالب‌شی۔ چه حـکم دخدای دکتاب خلاف کـوی په فقر
به مبتلاشی. که زناکا رزق به‌یی کم‌شی، بارانونه به پری نه وریږی‌ـچه
په هغه ملك سود خواره سوایی خـواره پیداشی ، هغه کـلی ښارونه

به وران شي، په هيڅ رنګ نقض عهد نه بويه ـ دملکونو ستنې دځوانانو قول عهددي چه خلق پکښې فراغت روزګارکا ـ چه‌دسر دارانو قول‌خلاف شي؛ غضب دخدای په‌هغه ملك تعين‌شي، داعتبار دروزګار خونه دخلقو ورانه شي. کافران هم ددنيادزيست روزګار دی، دوی شرم لري، خپل اعتبارنه خوځوی. مسلمان به پسو (۱) محکم په داکـارنه وی‌چه ددين ددنيا فيروزي په داکښې‌ده. خپله لويه عقيده اواخلاص دزړه هسې‌بويه. اما ددښنه په قول يك لخته باورنه بويه. مګر امتحان دده دکارو بارهابار شوی، عمل‌يې دهري ښې چاري ښکاره وی، عاق پدر نه‌وی، مـادرآزار نه‌وی ، دخدای په طاعت عبادت قايم‌ولاړوی د صالحانو د عالمانو دوست

داروی، په داهسې سړی اعتبار بويه. اوکه برخلاف وی، که سل‌سوګند کا؛ باور پری نه بويه ـ هرګاه‌چه دی په داهومره‌کار مخالف وی؛دسوګند دقول به‌څه‌پروالری ـ دغره‌په جنګ‌هم‌دلاوری نه‌بويه په‌غره‌کښې سل،زر سره يودی. دزور ور غليم‌سره جنګ په ناوخت‌بويه ـ که دصف‌وی‌که دقزاقۍ که ميدان که غرکه ډيـرۍ وی بهتر، اوکه دانـه‌وی شپه به‌ده، ترمنځ‌شي، ډيرقتل کشتن به نه وی. دصف جنـګې مـې‌چه اول ويلی کاريې خودمعلوم، لړی جنګ هم‌دادی؛ ياپکښې ګټل‌دی ياباېلل ـ په‌داځای هرزور چه‌ملوك دلښکر، دزغرو، دتورو دنيزو،دبرګستانونو دکيجمونو لری حاضر دی په استقبال‌دی ورروان‌شي.چه لښکر ټول تازه‌ترجنګ‌ګاه

ورولي ،په‌څـان دی هم مسلح‌شي ،تـرزغرو ترجيبودی ځان او فرزندان اودلښکر سرداران واړه لښکر لاندی کا ـ دحنين‌که دتبوك په جنـګ رسالت پناه دوه زغری وبـله‌ته باندی اغـوستی‌وی ـهرګاه چـه سردار دلښکر په داشان ږجوړيږی په داکار کښې ډير مصلحت دی. يږدلښکر قرار په داوشي چه سردار موقرارداد په جنګ وکړ؛ موږ خوبه قرارداد دمرګ وکړو .بل‌داچه غشي ټوپك پرنګی ودری دی(۲)که دی اول‌په‌غشي مشي سورشي لښکر بـه ابته‌شي ـ بل‌داچه دغليم جـاسوسان يې چـه ويـنی دا حـا ل به يـې تـر غليمه و ر سو ی ، دده د سردارۍ وهم سهم به پيداشي ـ په‌ښې لوری په‌کيږ لوری هراول غول دافوزونه دی وجوړيږی ـ په خپله دی ځای په غـول کښې وکـا، وجنګ وته دی

---

(۱) کټ مټ نقل‌شو مګر (په‌څه) ورسره ښه لګيږی .

(۲) کټ مټ نقل شو خومعنی يې څرګنده نه‌شوه .

تلوار په ځان هیچیری نه کا۔ داتوری چه ځوانـان وهی واړه دیوهی، دده تورې دی. ترجنګ پخوا دی پههرفوز په ځان وګرځی، دواړودلداری رحمت باد دی وکا ، دادِ دمردانه‌ګی‌دی سردارانو بلکه وهر چاته ورکا، بیادی خپل غول لره راشی، جنګ دی ترازوکا، سواره دی ځای په ځای په سردارانو په فوزونو ګرځوی. که حق تعالی بری ورکا؛ ورودی پـه قراری دوړاندی کیږی چه غلیم درست واخلی؛ هم دی‌دی په ځان غول نه ورانوی چه دغلیم دمکر دفریب ویره داځای لاده. که تمام فتح یـی حاصل شی‌دغلیم په ډیره دی ډیره وکا۔ فوزونه دی په غلیم پسی حکم‌کا، چه وارنه‌ورکوی په څوکروه چه غلیم آواره قتل غـارت شی هـاله دی خاطر جمع شی۔ شکرانه دی دفتح دوګانه وګذاری۔ دحق ثنا حمد دی ووایی چـه عظیم دولت یـی سرفرازکړ ــ کـه چـیری دده لښکر پس پای‌شی، په‌ځان دی‌مټوکاښه ښه‌ځوانان تیرانداز غوره‌غوره په جلب کښی

دده حاضر وی . پیاده دی ورته دوړاندی ولاړوی ، دده غول چه مټوکا داځوانان تیر انداز درستی تشی‌کا،زوی وروڼه امرګان یې توی شی ، په ده باندی دتوری وار راشی ، په‌ځان دی هم ګذرو کا زخم دی وخوری دسردار برکت ډیردی شاید چه داځای حق‌تعالی کشمایش فیروزی‌ورکا۔ که هیڅ نه‌شی پوهیږی چه‌که پای مردی وکړم؛ بل جنګ به‌هم‌وکړی‌شم. دومره سامان می‌شته، هاله رخصت دفراردی. پای مردی دی وکا، دځان په مرګ دی دغلیم زړه یخ نه‌کا اوکه نه مرګ ورلره ترژوندون بهتردی چه‌رسوا په‌جهان ګرځی. داهسی مرګ هم ورلره سوبه دی. دمـردانو مرګ به داهسی وی چه رسارسایی‌په‌مخ‌خوړلی‌وی، پیړوکی‌پړوکی‌په‌میدان کښی پروت دچالعن طعن په غوږنه اروی۔ دتلافی دپاره که تلافی‌وکړی شی تیښته که‌کا، روادی لکه چه ووایه شو

**قطعه :**

ناګاه عاقلی زقضا ازبلاګریخت    زدطعنه جاهلی که‌فلان‌ازبلاګریخت
ګر نیست‌ازسبب به‌سبب‌التجاروا    خیرالبشر زمکه به یثرب‌چراګریخت

تیښته چه دغلیم دپاره وی جایزه ده۔ چه دځان دپاره وی خواری، حیرانی، پریشانی، نامردی۔ خدای دی نصیب دچا نه کا۔ دمیدان مرګ د انبوه سره په عید شمارلی دی ــنور سردار لره بویه چه که امکـان د صلاح وی تلاش د صلح کا ، په‌ظاهر دې لافی د جنګ وهی ، پـه

باطن دې‌صلح له‌خدایه په دعاغواړی،خیر خیرات ، تصد قـات انـعام ، بخښښ ، پخول ورکول دې پـه داوخت لاډېر کا ، بډې ، رشوت دغلیم ووکیل ووزیر دې هم تقصیر نه کا،شاید چه په څه انواع خیریت‌عافیت په دواړه لوریه کښې پیداشی چـه‌الصلح خیر واقع شوی دی ـ دجنګ ئارګران دې مغروری په ډېر لښکرپه حشم په بهادری نه بویه ، ګوره چه د فتح باد دچا په لوری والوزی‌بل هومره خلق چه په دواړه لوریه تلف کېږی ، د صلـح پـه سبـب‌خلاصېږی ، ځای د صلح د تلاش‌دی.

**بیت :**

اګر میکنند تیرت آهن شـګـاف نهان صلح میجوی پیـدا مصاف

تر شل رنګه تدبېره چه تېره‌شی یو ویشتم یې مصاف دی . کـه کار په جنګ ورسېده لکه د صلـح‌په کار کښې خواهان د نجات ؤ ؛ دا ځای دې د خواهان د بدخواه دوینو د څښو شی ، ډاډ دمردانه‌ګی ورکا . زوی ، ورونه امرایان هم‌ددې‌ورځې دپاره یوه ذره د چا په مرګ اړنه وی . زوی ورونه هم هغه وی ؛چه په دا ورځ د ناموس دپاره یـک لخته ځان په میدان کښې د پـلارد ورور دواړاندې ځان پـاره پـاره پارچه پارچه کا ، د ژوندون اندېښنه‌هیچیری په زړه نه جار باسی . څو ځان په مړه خوك و نه شماری ،دفتح موندل محال دی ـ هرګاه چه دی تر ځان تېرشی زوی ، ورونه‌ترځان تېر شی هسی به یې امرایان ترځان تېر شی ، هسی به په هغوپسی نور لښکر تر ځان تېر شی ـ په دا هسی شان اخـتیار او جـان‌فشانی احتمال د فتح دی ، فتح بیا

مومی ـ هرچه په دا هسی ورځ دانیت پکښې نه وی ، هغه په زوی په ورور شمارلی نه بویه ، چه روسیاه‌او منافق به وی هیچیری پرې زړه ښه کړی نه بویه د موړه په زړه هم‌ددې جنګونو تلاش او تدبیرؤ ، ولی توری مودچا سره وهلی ، ددې‌هسی‌جنګونو قرار مو چه کړی دچا سره؟ ددین ددنیا فایده کومه وه ؟ خدای‌خو خبر دی چه داهومره جنګونه چه د سره تېردی واړه په مات زړه ،مګر دوه ورځې په تمام عمر یو دهیتم په وهلو بل د جګتا په مهم چه په‌مور چل باندې تمام لښکر د جګتـا سره را باندې لوښتی‌ؤ اوس مهم‌ورته امید شته . دریغه هسی‌ساعت وی ؛ چه په خپل مصلحت او جرأت‌په ټول اختیار دا هسی کار ولیدی ، دزړه ارمان ورېژولی ، خپل زوی ،ورونه یاران په میدان پړو کې پړوکې پراته ولیدی . ددوی خون بها مـی‌فتح وی ، که نه زه د یو سره په یوه

ورځ ښخ شوی ، که د زړه ارمان لرم خوبې هم دالرم بل ارمان می په زړه کښې نشته .

## فـرد :

**چه‌می اوس‌له‌لاسه ووتی‌آسمان‌شوی د هغو خبرې څه لره مذکور کړم**

د جنګ په ورځ درجال‌الغیب‌چه پښتانه یې غیبیان بولی ، هنود ورته جوګنی وایی البته په کینه اوږه‌دې وی یا دې وروستو ، ولی روبرو البته مجرب ضرر لری . څـوك دې‌هرګز څو ممکن مخامخ یا په ښی لوری دې نه وی ـ درجـال‌الغیـب‌حساب په دابیت معلوم دی .

## بیت :

کنجـغ باشم کنجـغ بشم کنجغ باشم کنجـغ اوشم

اګنی برج د جنوب د مشـرق‌ترمیان دی ـ اول چه غره دمیاشتی په هغه برج وی ، دویم په نیرت چه‌د جنوب د مغرب تر میان دی ـ دریم تاریخ په جنوب ، څلورم په غرب ،پنځم په بامپ چه د غرب‌و شمال ترمیان برج دی ، شپږم تاریخ پـه‌ایسان چه د شمال د مشرق‌ترمیان دی ـ اوم په شمال ، اتم په مشرق.دابیت چه کنجغ لفظ دی په څلور برج شی ـ کاف یې مراد داګینـی‌برج دی . نون دنیرت ، جیم دجنوب غین د غروب ـ باشم هم څلور برج‌دی .

ب بامـپ ، الـف ایسان ،شین شمال ، م مشرق ـ هم په دا حساب په درست میاشت درې ځله‌اته برجونه طی کوی ـ دا دمشایخانو په قول مجرب کار دی . زنهار حذراحتیاط بویه ـ بل سکر یلذر ستارهٔ مست پښتانه یې ستوری بولـی ،دا ځای هم احتیاط کلی بایده دی .

د خاص د عام په اتفاق مخامخ‌نه بویه ، بلکه په سفر په‌حضر چه‌دا ستوری په مخ کښې وی تله پرې‌نه‌بویه ـ په غره په مشرق وی ، په دویم په اګنی ، په دریم په جنوب،په څلورم په‌سنیرت ، په‌پنځم‌په‌مغرب په شپږم په بامـپ په اوم په شمال‌په اتم په ایسان ، په نهم په مځکـه، په لسم په آسمان په یوولسم بیا په‌مشرق ، په داشان په اته برجه سم برج په برج دورمی ـ بل دا حساب‌هم لازم دی چه زده شی . د آسمان برج دی ـ میاشت دونیم ورځی په‌هربرج‌کښې مقام‌لری نمریوه‌میاشت، اووه‌ستوری په‌داشان پکښې جاروزی ، نـور موقوف هـم چـه میاشت

په عقرب کښې ملاحظه کلی بویه .دهرکار دآسمان‌ددولسو برجوعلم په دابیت کښې‌مختصر چا راوړی دی .

**بیت :**

لاولالــب لاو لالاشش مــه است  لل کط وکط لل مشهور کوته است

د بروج حساب پــه شمســی‌میاشتو تعلق لری ، ددولس برج ، دولس میاشتې غره د نوروز ورځ دحمل ده ــ فارسیان یې فرور دین بولی په دا موجب حمل ــ ثور ــجوزا ــ سرطان ــ اسد ــ سنبله ، میزان ــ عقرب ــ قوس ــ جدی ــدلو ــ حوت دولس واړه میا شتی شمسی هم دغه دی چه شمار شوېد حمل غره ابتداده .

لاولالب دادرې میاشتی لا په‌حساب د ابجد یو دېرش کېږی .
ل ــ ۳۰ الف ، ۱ ، لام دېرش‌الف یو حمل یو دېرش . ورپسی ثور هم هسی ــ جوزا دودېرش دالف په ځای ب شوه ، ب په جمل دوه کېږی . چه ابجد یې زده وی‌روښن حساب دی ، مطلب د عقرب درې برجه دی چه میاشت پکښــې‌راشی نحس برج‌دی ، هر کار پکښې منع دی . پښتانه‌هم‌عقرب درې‌ورځې‌یا دوی هغه دا دوه نیمی ورځی دی چه ممنوع دی‌کا ، منحوسی یادشوې‌دی ، حساب یې په پوهه ددې دوو بیتو دی .

**مثنوی :**

آنچه از ماه میرود بــه شــمار  هــر یــکــی را دوازده انــگــار
پس بهر برج طرح کن سی سی  تا به برج که مقصد است رسی

په تمامه میاشت کښــې اووه‌ورځی نورې هم نحسی شمارلی دی هرکار پکښې ممنوع دی .

**قطعه**

هفت روزی نحس باشد در مهمی  زو حذر کن تا نیابی هیچ رنــج
سه‌و پنج‌و ســیزده بــا شانــزده  بیست‌ویك‌با‌بیست‌وچاروبیست‌وپنج

آخر چهار شنبه هم د هــرې‌میاشتی نحس مستمر په قرآن کښې یاده شوې ده ــ درې ورځی نورې‌هم‌نحس دی ، هغه مختلف حساب‌لری په هره هفته کښې یوه دوه ورځــې‌په هغه لوری تله منع دی هم پوهــه لازمه ده .

**رباعی :**

سوی مشرق دوشنبه و شنبه نـروی ای بـرادر مـن بـه
آنـکه در مـغرب آورد کیـنه روز یك شنبه است و آدینـه
روز سه شنبه و چهار بفـال نـروی زیـنـهار سـوی شمال
روز پنجشنبه ای نکو اخـتر رخت خود جانب جنوب مبـر

هرچه بزرگانو په هغه **عـمل** کړی دی لابد پیروی بویه ، او که نه ورځ شپې واړه د خدای ، **الایام ایام‌الله** والعباد عبادالله مبرمه .

قضا به هیڅ رنګك بدله نـه شی ما په ځـان رجال الغیب تر هسی
حده احتیاط کاوه چه **په هغـه** لوری به دوی وو ؛ و هغه لوری ته به وښکاروته هم نه تلم . هغه **ورځ** به چه داواقعه حادثه پیښیده رجال الغیب مخامخ په مغرب ، ورځ **دجمعه** چه ودغه لورې و ته منع ، زه وپیښور ته مخامخ پرې روان شوم ، قضا اوتقدیر په تدبیر پورې خاندی .

**قطعه :**

ځان به‌خلاص نه‌کا دبدساعت‌له‌شره نجومی‌یې که خبر دی ته علو مـه
وسړی ته په‌وارواړ هغه رسیږی چه دده په پیشانی باندې مرقومه
البته بویه که دردشته دارویې‌هم شته ، اما قضا نیوله نه شی .
توکل هم دادی چه چا کړی‌دی‌هغه کړی ، نور نیك بد چه ورسیږی له خدای یې ګڼی .

**مصرع :**

باتوکل زانوی اشتر به بند
که د چا لامبو زده وی ، شنازبیږی دا سبب نه وی ، په توکل په سیند ګډیږی بیا دې سیند له‌وځی،دا سببونه هم خدای کړی دی دادې واړه له خدایه شماری .

**بیت :**

ګرچه کس بی اجل نخواهد مرد تـو مـرو در دهـان اژدر هـا ـ
بل د جنګك کار مـدار پـه‌جاسوسانو دی ، هر جنګك چه دی‌که صف جنګی وی ، که شبخون کـه‌قزاقی ؛ جاسوسان همیشه د غلیـم په ملك په لښکر کښې تعین وی ،څو په دا کار کښـې بیـداری وی هومره بهتره ده د غلیم په هر **حال** چه آګاه کیږی هاله به یې علاج او تدارك وکړی شی .

**بیت :**

چه نیکو متاعیست کار آگهی    کزین نقد عالم مبـا دا تهـی

دخپل کار د خـپل لښکـر دجاسوس لار بند کول چه خبر ترغلیم نه رسېږی ، طلایه څوك یې ، مورچال د لښکر دا خبر داری هم‌واجبه ده .

که هر څو قوت زیات وی دغلیم‌په ملك دشپې قرار نه بویه ، مگرچه یو په لسه په غالب څان غالب وی ،لښکر پرې زیات وی . که زور ور غلیم په یلغار شپه خوړلـی سـتـړی‌ستومان په ملك ورشی ، بیا په بیار ته جار واته کا ، ددې سره البته‌جنگ بویه .

داهسی قابو خـدای وچاتـه‌ورکا ، لږ چه تازه دم وی بهتر تر هغو ډېروچه ستړی البته وی . که په‌داهسی غلیم تلوار نه شی ، چه دی وجاروزی په هر ځای چه ډېره‌کا ، شبخون یې په ډېره باندی‌وشی، تمام امید د فتح دی ، کـه خـدای‌ورکوی تیار نصرت دی . د غلیم‌نفاق غنیمت شمارلی بویه ، چه په غلیم‌کښې نفاق وی امان ورکولی نه‌بویه، چه دا هسی وخت ولجه دی .

**قطعه :**

بخشی وقت را غنیمـت دان    گوهـر وقت در بـها نـایـد
وقت خود چون‌زدست‌کس‌برود    باز آید بدست یـا نـا یـد

د غلیم په تملق غلطی نه‌بویه،له غدره له مکره ایمنی نه بویـه ، دغلیم له لور یه له دیاره که هر څوآشنا سړی چه راشی په قول یـې اعتماد نه بویه .

**مثنوی :**

بـهرکس رهی آشنایی مپوی    زهر آشنا روشنایـی مجـوی
بلای که بر تو زعالـم رسـد    جز از جانب آشنا کـم رسد

ددې علم نهایت او پایان‌نشته‌خو همدا هومره فضولانه د بل بس. والسلام .

**لسم هنر د سخاوت ورکول ، پخول**

دا کار هم عطا د الهی ده ،خوی د پرور دگار دی ، د پیغمبرانو کار دی ، وابسته په جبلی فطرت‌دی.اما په کسب یې احتیاج دی چه‌ورکول

یو نه بله زده کوی . تر شجاعت‌نه هم دا هنر افضل دی لکه نظم نغمه چه سره لازم ملزوم دی ، هسی‌دا دواړه هنره شجاعت او سخاوت سره وبله ته تړلی دی .

که شجاعت وی سخاوت نه‌وی‌کمال نقصان دی ، که سخاوت وی شجاعت نه وی لا کاریې چلیږی‌هومره نقصان نه لری .

## بیت

سخاوت بسی درد هارا دواست    سخاوت مسی عیب را کیمیااست

که غزل ، قصیده نور شعریی‌ربابه ، سرینديې وایه شی ځای‌لری اما که بی بد لوځوك رباب ، سرینده‌وهی گونگ دی ، یأیې نه زده ، څه مزه به نه لری که هرڅوبهادر تورزن‌وی ، چه سخاوت یی نه‌وی ، وقروقار به یی نه وی . سخاوت په دوه رنگه‌مشهور دی یو بخښل ، ورکول بل حلالول ، پخول‌دوه توگه ارمان نه‌لری‌اما تود نغری لا څه بل برکت لری ؛

## فرد

خرم کسی که حاصل عمر عزیز را    بادوستان بخوردو بدشمن‌رهانکرد

عاقل لره‌بویه چه‌دخپل دخل‌خرڅ سرشته په لاس نیولې لری. خرڅ موافق له دخل کاندی بخیل‌وی‌نه دی مسرف بد خرڅ وی خپله‌گټه خپل محصول دې په درې قسم مقررکا ، دنیا محل د حادثاتو دی یوه‌برخه دې پس انداز ذخیره کوی تنگخی‌لره‌دې ساتی . بله برخه د عیال چه ددیو حق، زور ورپه غاړه دی ، بله برخه‌داهل استحقاق صله رحم و غیره . بله دمیلمانه زواید تر دا بخښل ،ورکول . که په دا کښې محتاج شی دعیال د اهل استحقاق د برخوپکښې‌کار پوره کا . د ذخیره په برخه دې کار نه لری مگر چه هیچیری په بل‌ځای لاس نه رسیږی ، چه دا هم‌ددې وخت دپاره کښیښنونه د بخل‌دامساك په سببوی . دگور لړم ماران هم دامال دی ، دا هسی مال دې‌خدای وچاورنه کا . چه دتنگسی او دحادثې دپاره دچا دنفع په سبب‌ساته‌شی ، داهم دسخاوت سره داخل دی . که هرڅو ډېر مال سره جوړشی ، واړه ښه اما قسمت یی هسی بویه لکه مذکور شو ، له ډېرو ډېرله لږو لږ هغه مال چه ټولیږی زکوة دې کال په کال وباسی .

قسم چه دضیافت د میلمانه‌دپاره دی . میلمانه په څو رنگه‌دی، دوستان ، خویښان دا په‌کور شمارلی‌دی لکه ځان هسی د یو ، یا یاران

مصاحبان ، وروڼه ، قبیله فرزندانددیو سره دي جشن ، مجلس او صحبت وی ، طعام دي همیشه لـهدیو سره خوړشی ، چه که ځـای لري. خو هم دوی خوراك (۱) همدیولریچه دوی‌پهحق پهمینهخپله وینه‌په

میدان د کار زار تو یوی که کورهزارلونه طعام خوری ، دا طعام به لا په عزت د حرمت د محبت د مخه یـيخوری ، پری‌ښه‌لګیږی. که‌بخښل‌وی که خورول وی هم اول دي په دا دوه‌طایفی وی . نور بیګانه میلمه ، په دامیلمه نیکنامی د ملوك د هغو دوه‌طایفو د هر چا سره کیږی دديمیلمه خدمت په واړو سره لازم شو ، لکه‌د تورو په میدان دنام دپاره ، دخپل سردار دشرم دپاره سر نښندی ، داځای هم میدان د شرم دی ، یا دیګك یاتیغ دا ځای هرڅوك سره پـه داخدمت ودریږی . څو میلمه رضامند پانه څوی ، هومره دي آرام نه کا ،میلمانه په ډیر رنګك وارد شـی ،

څوك په خوراك راضی کیږی څـوكپـه خـد مت راضـی کیږی کـه دخوراك میلمه وی هم دي خدمتډیروکا ، پاته هغه چه لوی بزرګك وی، میلمه که کافر وی که جهود وی که‌ترساوی خدمت یې بویه ، حدیث دی اکرم الضیف ولوکان کافراً ملوكبویه‌چه د هر قسم غله ، مصالح و غیره چه لوازمه د میلمانه ده ، په کـورکښې مهیا لری بلکه بغیر انـګوری شراب نور هر قسم اشربه دي هم‌موجود لری لکه بنګك ، لکه پوست افیون‌مفرح ، ګوره چه څه قسم میلمه‌ورکره راشی چه ددي احوال څښتن وی . طعام بغیر کیف خوړلی نه‌شی،وهغه لره دي هر څه یاد کا ورسوی بغیر شراب انګورئ که یی غواړیعذرخواهی دي وکا ، په هسی شان چه آزار نه شی په خندا په خورمی‌دده په زړه ورسره کار اخر کا ، هرچه یې رضاوی هغه کار خدمتدي‌په ځای کا ، چه میلمه چا کره ورشی ډیر برکتونه وروړی ، چه رضامندورځنی ولاړشی ډیرې بلا د هغـه

کوره واخستی شی . د خوراكدخدمت‌ثواب یې ډیر یاد شوی دی . رزق خپل خوری نیکنامی ددنیا ، ثـوابدآخرت ، دکاله وڅښتن ته ورکوی. آداب د میلمانه ډیر دی دناستی ،دخدمت که واړه وایم‌کتاب اوږدیږی. هومره دا قاعده ساتلی بویـه چـهبیرون میلمه چه اجنبی ګاه ګاه‌وارد کیږی په درې رنګه وی ، یاتر ځان‌پاس یا برابر یا کوز چه تر ځان‌لوی که لس کسه ، د پنځوسو کسوطعام‌ورلره بویه ، طعام په درې قسم ، څوك په تکلف ، څوك میانه څـوكآخر ــ ډیر تکلف هم په طعام کښې

(۱) دغه جمله کې مې نقل شوه خو معنی یې څرګنده نه ده .

نه بويه ، نكه خپل روش وى طعام‌هم هغه ، دبل روش په عاريت‌اخستل چه مناسب خو طعـام دي ډېـروي‌حرمت هم دادى . كه د ځان برابروى لس كس‌ولره دديرش كسو طعام ،كه ترځان كوزوى لس سړيوته دشل سړيو طعام تر ځان چه بالا دست‌وى‌وهغه وته په ځان په فرزندان پـه برادران ولاړ بويه ، مګر مبالغـه‌وكاچه زړه يې آزاريږي .

هاله دې كښيني . فرزنـدان‌برادران خودې ولاړوى ، چه برابروى دهغه سره دى كښېنى ، په صحبت‌دى مشغول لرى . فرزندان ورونه دى نه كښېنى ، مګر مبالغه وكا .چـه تر ځان كوزوى د هغه وخدمت وته دې ورونه فرزندان و دروى .چه په‌اقصى‌الغايت راهنى كا ، اګرچه ملنګ‌ليونى وى‌يابد دين، بدمذهب د ميلمانه خدمت دې په دا طريق كا ، ددين د مذهب پوښتنه دې نه كا ،په ابراهيم غوندى پـيغمبر د حـق تعالى عتاب خطاب د ګبر دپاره‌شوى‌دى چه ميلمه ورغلى‌ؤ . د ميلمانه‌خو خدمت دلجويى نه نورى خبرى . كه‌غليم پدركش پسر كش وى ، چـه ميلمه شى ، په خندا په‌هوس ورسره‌ساعت تير كړى بويه ، ترځان پاس ميلمه وتـه واړه ځـان شه سـازكړى بويه ، جامه دې ښه واغوستبه شى ، فرزندان ورونه هم په قدرحال‌كه داشان ونه شى په زړه يې مظنه

وشى چه مګر ماتر نظره نه راوړى .فرش‌فروش ، دطعام په وقت په‌سفره باندى سبزى ، مربا ، آچار مالګه داقسم سركه وغيره لازم بويه ، چـه ډېر ثواب دى . ښانكو نه ، تباخونه‌دى لوى وى ، چه بركت په داكښې دى . دزرو تباخ ، ديګيه بلكه پـه‌مذهب دې هم نه وى . كه كوزه ، تشت ، دسپينوزرو د سرو زرووى،ودادې نه وى چه د سپينو دسروزرو په لوښى خورى . حديث په دا باب‌وارد دى ګويا چه ددوزخ اوريې‌ونفس وته واچاوه ، خلاف د شرع ثواب‌دې هغه خـوراك نه وى ، سواتـر ضيافت ، نور خيرات ، تصدقات‌ډېربويه چه پخيرى مستحقان اوفقرايې خورى ، عرس د رسول الله ، دنوروبزرګانو ، د پلار د نيكه ، د فرزندانو په ارواح دښو شپو د ښو ورځو دادې هم هميشه وى . غرض چه مردانو نغرى خودې خداى تو دلرى . هرطورچه وى ، په پخو لو كښې اسراف نشته كه پور كول كښې وى كه نه‌وى هم ما په كيمياى سعادت كښې ليدل چه امام محمد غزالى رحمت‌الله‌عليه فرمايلى دى‌چه يوزكوة دشريعت دى چه له‌دوو سووروپو پنځه ووزى،بل زكوة د طريقت‌دى چه پنځه‌ساتلى شى ، نورى واړه وركولى شى ، بل‌زكوة د حقيقت دى چه واړه وركولى شى ، هيڅ ساتل نه شى .

### قطعه

چه نه دوسو پنځه ورکړی — دا زکوة د شریعت دی
چه له دو سو پنځه کښیږ دی — دا زکوة د طریقت دی
چه همه واړه تلا کړی — دا زکوة د حقیقت دی
په دادری کښې دې هر څه شی — هغه واړه سعادت دی
چه له دی واړو بیرون شو — مخ یی تور شه فضیحت‌دی
په نیت جوړ اوسه خوشحاله — همګی مدار په نیت دی

## یوولسم هنر معاشرت

ازدواج چه توالد تناسل و دانیءد خلق هم په داده ، عظیم کار دی، زورور روزګار دی ، قوام دعالم‌بقادبنی آدم ترقیامته پورې هم په دا معاشرت ده . ښځی مزرعه د مردانودی ( نساء کم حرث لکم ) د جهان ودانی په دا زراعت ده . مخلوقات‌د حق تعالی ډیر دی ، تر شرح تر بیان تیر دی .

لکه آسمان ، مځکه ، غرونه ،سیندونه ، عرش ، کرسی ، فرښتی، جنتونه، حور قصور، انواع‌مخلوقات‌شك نشته چه په واړو کښې سړی بزرګ او شریف دی . شریف ترین‌دواړه مخلوقات سړی دی په آیت ثابت خبره ده ، ولقد کرمنا بنی‌آدم‌ان‌الله اصطفی آدم‌ونوحاً و آل ابراهیم و آل عمران علی‌العلمین . هرچه بی‌سړیه چه پیدا دی هغه واړه دسړی دپاره پیدا دی .

### مثنوی

ای ملك زاده اقلیم وجود — پدرت خیل ملك را مسجود
گل تویی و دگران جمله چوخار — شیوهٔ خار پرستی بگذار

القصه سړی دوه جنس دی‌مردان ، زنان ، په دا کښې شك نشته چه مردان بهتر تر زنان دی‌لکه وارد شوی دی ( الرجال قوامون علی‌النساء بما فضل‌الله بعضهم علی‌بعض ) بی شکه چه فضل د مرد تر ښځو ډیر زیات دی ، تر هسی حدلکه دهمه عالم مخلوقات خلقت‌دسړی دپاره دی ، هسی دزنانو خلقت دمردانو دپاره دی . څکه ددیو په‌حق وارد شول (لوکنت امرلاحدان یسجدلاحد لامرت‌النسآء آن یسجد لازوا جهن لما جعل‌الله لهم علیهن من‌الحق) یعنی که سجده بی خدایه وچاوته روغه وی ، خپلو عورتو به وخپلومړونوته سجده کړه .

هرکاه چه افضلیت د ښځـوکوزتر مردانو ثابت شو ، مـردان افضل بهتر تر ښځـو دی ، ددیـومزرعه شوې ، ددیو دپاره دی سبب داچه مردان تردیو پیدا کیږی . پهدا خلاصه مطلب پوری د مـردانـو ددولت په سږی توب داخلی شوې ،خلقت یې د مردانو دپاره دی ، ځکه رسالت پناه وفرمایل ( تزو جوافانیمکاثر بکم الا مولا تکونو اکرهبانیة النصاری ) دا هم حدیث دی (انکحوافانی تکاثر بکم انکحوا امهاتالاولاد فانی آباهی بهم یومالقیامة ) وامتوتهحکم وشو چه ډیرې ښځی کانی چه اولاد ستاسی ډیر ، زه دقیامتپهورځ پری لویـی کـوم . د نـورو پیغمبرانو تر امت د ما امت زیـاتوی ، نکاح سنت دی . فرمایلی دی چه نکاح دماسنت دی . هرچه نکاحنه کا هغه نه دی د ماله امت (النکاح من سنتی فمن رغب عن سنتیفلیسمنی ) و نکاح دزنا شوهری فضیلت ثواب ډیر دی . که ددنیا آبادانـیخوښی ده په نکاح کښې ده . که د آخرت ثواب ښادی دی پـه نـکاحکښې .

ښه عورت ددین ددنیا دولتده.مفسران وایی چه دا آیت هم ددی باب نازل دی :

ربنا آتنا فیالدنیا حسنـة وفیالاخرة حسنة و قنا عذابالنار — بده عورتینه دوزخ ددې دنیا ده . سر په دنیا چه دوزخ ده بدهعورتینه ده .

نکاح روادی دوه دری څلوراماښهتر یوه ده دچا مذهب دادی چهدوه دریڅلور دې اسره نهشی . درسالتپناه نه نکاحوو ، داتمسك هم لری اما دا خبره تر څلور مذهب بیروننده ، مخالف مذهب دی . نکاح خـو څلور روادی په آیت ، په حدیث ، پهاتفاق د امامانو د سیرت .

خدمتګارې پرستارې تر زروپوری هم روغی دی . د شریعتحکم خو دادی په دا کار کښې درجلیـتداستطاعت ، ددولت دخل تمام بویه. که مفلس وی یوه هم ورلره ګـرانده . په دا چه یویی محافظت دشوار دی بل یې خرخښې ډیرې وی . کهدولت وی ، رجلیت وی دا هرڅـه پکښې آسان شی او که نه په ډیروکښې ډیر غم دی . دا کار دسایر ناس دی اما ملوکان چه اهل دولوی،دولت او فراغت لری هغو لره پـه مقدار درجلیـت څلـور نـکاح پـهدارواشول چه څلورم شپه دې دخول نه قضا کوی . موافق دې په شرعبرابر د هر یـوې سره روزګار کا ، که دا حال به لری څلور دی وکا اوکه نه خو یوه دې وی ، چه زړه ټول یو ځای شی ، زړه چه له خپله تارپه تار کاوه شی ، دا کار دی چه ډیرې آشنایی ډیر یاران کا .

## رباعی

چه ډېری آشنایې ډېر یاران کا پادیشونه (۱) پـه خپل ځان کا
آشنایی عـالـم خـوار کـړ د هجـرا نـه نـه افـغان کـا

ښځې په مثال هاتیان دی ، بیادرست هاتی په صنـدوق ساتل ، خرڅ خوراك ور رسول ، په صندوق کښې سواری په هاتی کول ـ هاتیان چه سره دوه درې شی ، بې دروغوبه سره پاته نه شیدهاتیانو پهدروغو کښې ملك پایمال کیږی . مرد بویهچه دهاتیانو ددې هسی کارونو تر عهدی ووتی شی . په هرمصلحتیوهبهتره تر ډېر ده .

## بیت

چه میرمنی پکښې دوه شـی هـغه خـونـه ابتـه شـی

نکاح چه کا د نکاح کارگراندی . د عمر یاره خو عورت بویه چه په اصل په نسب کښې دلویهکوره،شرم عفت ، عصمت په هغه خیلخانه کښې مشهور او معروف وی ، ددینکار پکښې رواج لری ، په قرینـه کښې دې تر ځان کوز گوری . لویی‌دلویی حسن شمایل ، خوی خصلت دې وکوت شی . د شرع حکم دخپل نظردی چه پخپلو سترگو دې وگوری که ممکن نه وی په اعتبار ینسایا پهپیر مردی وگوری ، په ځوان دې نه گوری . د ځوان تر نظر هر رنگهعور تینه جل ، جلوه گره وی . که رنګ ، خوی دواړه سره ښه وی ،گنج هم دا بولی . که رنګ يېهومره نه وی ، میا نه وی ، خوی ښه وی،پـه ښه خـوی پـه ښـه خصلـت قـبولـه کړی بـویـه ، چـه ترظاهر نه یی ، با طن فرخی ډېـره وی . گل که هرڅو ښایسته ویخوچه څو ورځی دی . گنی که سپیره درمه دی ، په لذت پوری قیمتی لری،داگرلرگی تربویه پوری په قدر دی.

له نژدې خویښانو دې نه وی،کمینه کم ذات دې نهوی . چه کمذاته که هر څو ښکلی وی یانور ښهوی،په مثال لکه په چار چوبی کښېدگلو بوټی ، که هر څو ښایسته شالیزبوټی وی ، گل ښه شگفته لری خو بیا دچار چوبی بوټی دی . کونهچهبوی لذت یی اخستی دی ، کوچنۍ ورځنی دبل نه پیدا دی ، دا هم نهویچه نکاح منعقد شی شل ځیزهپکښې بویه چه په ځای شی . اول دې ناویپه شپه کورته راولی .

(۱) کټ مټ نقل شو خومعنییې ښکاره نه ده .

دویم دې وینښته دناوی د وچولی‌په ګوتو ونیسی ، دادې ووایی اللهم جنب‌الشیطان منی و منها ــ الهم انی‌اسالك خیر ها و اعوذبك من شرها،
دریم دې دواړه پښې د ناوی‌برې وینځی ، هغه اوبه دې په هر لوری د خونی پوړ وهی .

څلورم دوګانــه دې شکرانیـه‌وګذاری .
پنځم په اوله‌شپه دې وطی‌وکا،دا پنځه توکه داول شپی دی . نور روزګار دې همیشهٔ .

شپږم ولیمه دې هم ژرو کا .    اووم خوشبویی دې همیشــه ور رسوی په سفاهت په خرخشه‌دې‌آزار نه شی .
اتم په مزاح په ملاعبه دې ورسره درآمد زیست روز ګار کا .
نهم دې ورته تملق چاپلوسی‌نه کا ، چه عبدالزوجه شی ، رسالت پناه فرمایلی دی نص عبدالزوجه ،خدای تعالی لکه مردان بهتر پیداکړی دی ، هسی دې بهتر فایق په هرکارکښې په ښځه اوسی ، بهتر چه‌کهتر کیږی ښدادی کومه ؟ .
لسم غیور دې وی چه د یوځنه شی . دا مذکور به د غیرت پــه خصلت کښې ووایه شی .

یوولسم نفقه ورسول دی (وابتغ‌بین ذالك سبیلا) .
دولسم احکام د حیض ، دنفاس، دا بدست دنمانځه دغسل وربښیل.
دیار لسم د خوب حجره بیله‌ترنور کوره . که ډیر کور ونه وی، واړه سره بیل بیل سویه ، برابری‌له واړو .
څوارلسم که تر میان یی نشوزنه وی حکم دې ......
پنځه لسم په وخت د دخــول‌دخدای پاك نام یادول چه شیطــان ورځنی لیری شی .

قل‌هوالله احد لوستل چه فرزندیی‌صالح پیدا شی ، دولتمند بــختور وزیږی . ډیر دې مباشرت نه کا ، په‌څلورم شپه دې البته بویه ، دصورت توان ، قوت سرمایه د وجود هــم‌دا منی ده ، ضایع کول یې نه بویه .
شپاړسم غسل تازه په تازه‌بلافرصت دې دواړه سره کا ، چه په شریعت ، په حکمت کښې تازه‌غسل‌ژرپسندلی اوبه په اوړی په ژمی .
اولسم خپلی مستوری و ته دلالت‌د خدای د ذکر ، د اطاعت ، دعبادت په داکار کښې‌یې ټینګول‌په ډکه‌شی.سجده دشکر په ښځه چه شنده او عقیمه نه شوه .

اته لسم په زوی ښادی په لوردلگیری نه بویه .
نولسم عقیقه دزوی دوه مړونـــهدلور یومړ . د هلك د سرویښته په اوومه ورځ تراش کول ، په وزن‌برابردسرو زرو سپینو زرو تصدق کول په اوله ورځ چه وزیړی یا نبات یاخرما د هلك تر خوله کول .

شلـم پـــه اوم ورځ ښه نـــوم‌وربانديې کښیښودل . سواتر دا یو ویشت حقه د مرد په عورت دی ، یوویشت حقه دعورتی په مرد دی ، هغه به هم مذکور شی . اما هر چه‌حقونه‌د مرد په عورت دی هغه واړه په‌عفت اوپه خدمت کښې دی چه دعورت په‌مرددی هغه‌واړه‌په‌مهربانی اوپه خدا ترسی کښې دی .

هغه حقونه دعورت په مرد دادی : لـــکه مهر ادا کـــول ، نفقـــه وررسول ، په څلورمه ورځ دخول‌کول ، اسباب ، درستن وررسول ، خوشبویی ورکول، کورځای‌دنماستی‌علیحده کول خدمتگاره یا مـــزدوره ورکول ، د ایمان د مسلمانی احکام‌ورښیل ، بی موجبه لت اونه وهل. په داشان لکه مذکور دی یو ویشت‌حقونه د عورتی په میړه شته اماد ما مراد په دا رسأله کښې ملوکان دی‌ملوکانو وته کورونه په حساب‌کښې

لکه نفر چاکر دی . دا حقونه په‌شرع‌کښې وهغوته یاد شوی دی چه مګر څوك تنګ دست دی یا نادار دی‌یا جاهل . ملوکان چه قابل دی دا کارونه حـــقو نه د دیـــو واړه پـــه‌یوه لطف مرحمت کښې په ځای‌شی، له دیونه خو مهر بانی او خدا ترسی‌بویه ــ خپل شرم اوخپل نام و ته‌کتل او انصاف له لاسه نه اچول ، که‌دی هومره رجلیت او قوت نـــه لـــری څلور نکاح په شرع روغ دی ، که‌عدالت او ســـویت تر منـــځ جـــاری نه لری ، نه خدای ترسی پاته شوه ،نه انصاف پاته شو ، له دیو نه نور خلق دعدل د انصاف امیدوار وی،چه په کورکښې حال داوی قباحت کلی دی .

تر دا پاسه نا انصافی دا چه‌په شرع زر دوه زره سوریتی وینځی هم روغی دی . دا روایت مبالغه درواکیدو ده . که خواري حیرانی ، زړی، سال خور دي د محل د خدمت دپاره‌وپیری په محل یې داخلې کا ، چه دمیړه حاجت یې نـــه وی ، دتوالـــدتناسل له کاره پاته وی ، خو ډیر ښه بلکه ددیو په ساتل یې ثواب‌دی.اما که دی واړه حور مثالی ، پـــری پیکرې غوره غوره ، چوڼ چوڼ سره‌ټولې کا ، ډیر رسیړی خو یالس‌شل وته ورسیړی ، دا نوری واړه هـــم‌هسی د اشتیـــاق پـــه لمبو کښـــې

ورتیږی ، تر زرگونو پوری ورته گرزی ، نه‌اولاد چه‌پرمشغولی‌وی ، نسل بی باقی پاته شی ، نه یـې حـظ‌نفسانی ــ پس داکوم انصاف دی ؟ هر ملوك چه دا هسی وی له انصاف‌به محروم وی ــ نقصان یی دقابلیت واقع کیږی ، انصاف لوی رکـن دقابلیت دی ، بلکه په طاعت شمارلی دی .

## مصراع

انصاف گفته اند که بالای‌طاعت‌است

برای خدای له دی هسی نـاانصافی دوری بویه ، څـو چـه ور توانیږی هغه هومره دې ښه په‌عزت‌په حرمت ساتی ، چه د ځان ځیزلکه خپل ځان هسی وی . له اصیلو له‌خدمتگار قرینه‌ؤ وبله ساتلې لری . لکه دده خدمتگار دی هسی د میرمنوخدمتگاردی . که تجاوز په دا کـار کښې وکا ، ادب او تادیب دې لازم‌شماری . گستاخی او بی ادبی دې نه‌لری . د هر چا قرینه چه ابتره‌شی‌سرشته دخونی د روزگار ابتره‌شی. چه سرشته د خونی د روزگار ابتره‌شی‌هسی دهغی‌خونی برکت لاړشی. ملوکانو لره بایده دی که هر څودپرکورونه ، خدمتگاری ، عورتینی په کور کښې لری ، دواړو د حال ،دخوی ، د خصلت له ناست له‌پروت دې خبریږی . په خوراك ، په پوښاك‌په زیست ، په ژواك دې خبریږی . داعالم واړه چه دده په محل داخل‌دی مثال د باغ د بوستان لری ، چه

خاصه هم دده دځان باغ وبوستان‌دی ، چه دی یې میوی خوری ، دی گلونه بویوی . بوستان لره اوبه اوتربیت بویه ، که هر څو اوبه ډیرې وی چه بیروخه درومی هم بد ، که‌کمی وخوری هم بدوی . بوستان لره د مهر محبت اوبه بویه . باغبان‌بویه‌چه د هرې ونې ترویخ په رنگ رنگ اوبه ورسوی . باغبان کار کن بویه‌چه دونو خبر اخلی ، تربیـت یـی دباغبان په حکم کا ــ ملوك خودباغ‌څښتن دی . دده مهر و دولت‌جویونه دې چلیږی ، ورځو شپه جاری وی‌اما باغبان او د باغبان کار کن کار گذار بویه . که باغ لوی وی پـه‌موافقت به‌دلوی والی کار گذارغواړی پس لازم شو چه دده په‌نکاحی‌محبوبوکښې چه دوراندیش ، وفاکیش ، فهمیده ، مهربان ، خوش خوی ،نیکخواه محبوب وی ، چه په شرم ، په ناموس پوهیږی هغه دې صاحب‌مدار اختیار د درست محل وی ، کیوانو دې وی ، حکم حکم دې دده‌وی . چه سلوك دې د خدمتگاروسره په هسی شان کا ، چه د کور لوی‌ملك خویش دوست خیلخانه واړه ورځنی راضی وی . راست گوی‌وی،چه دهرچا د حاله په راستی ویـل

کا ، که دا هسی خوك پیدا شوه‌بخت‌دواړه کاله دی . لکه باغبان چه ښه وی دباغ څښتن بی غمه وی . خوپه‌میوو په ګلونوېي کار وی . ددي کار ګذار مدد کار دي هم‌ورکا، چه‌فراغت‌ددوی کار چلیږی . که محبوبه یی دا هسی نه وی په خیلخانه کښې‌یوه‌بله دلسوزه ، ګستاخ ، قریبه په‌شرم شریکه بویه ، چه په ځای دباغبان وی . که هغه هم نه وی یوه بله له نوکرانو اعتباری ، هوښیاره دانا په‌داکار نصب کړی بویه . چه‌داسرشته په ځای وی ، بویه چه هره ونه چه‌دي باغ لایقه وی ، هم هغه دي‌پکښې نهالیږی . چه لایقه دباغ نه یا ،اغزنه وی یابی خونده وی یاترخه

یا بد بویه وی ، نوبت په نوبت‌رنګ‌په رنګ لری کولی شی . هرچه‌ښی ونی وی میوه ښه ، ګلونه یی ښه‌وی‌چه باغ پرې ښه ایسی ، هغه ونی دې پکښې پریږدی ، خس خاشاك ،بدبوئی دې ورځنی لری کاوه شی ، چه پاکیزه ونی همیشه تـرو تـازه‌برومندي شګفته پکښې ولاړي وی. چه دباغ په لیدل ، دګل په بویول ،د میوي په خوړل په هرڅه زړه ښه کیږی . څویی دجوی اوبه وی هغه‌هومره دي دونی وی . که ونې ډېرې وی چه اوبه یی نه وی د هغو واړوونو څه حال نه وی نه یی ګل دګل په دود وی ، نه یی میوه مزله لری.ادب تادیب لکه ښاخ بری او سمول دونو چه ونی شاخ پری نه مومـی‌بیروخه لویی شی . لطف ونازکی دباغ نه‌وی ، نظارت اوتازګی‌وساتی.هرچه باغبان دا بست دی . که‌باغبان ښه صاحب وقوف وی د باغ هره‌چارپه‌ځای ــ دامثال خود وایه شی چه عاقل وی ښاخ درښاخ پـه قـیاس‌در مـعـلوم شـی . مضمـون یـې ډېر دی . دا دی هم زده کا چه په‌عورت یا په خـدمتګاري پرستاري دې مینه عشق زیاتوی . څو توانیږی‌داراز دې پټ لری . عورتینی په‌پوهه کښې ناقصی وی .

که هوښیاري وی خو ښه او که‌نه اکثر کج فهمې وی مغروري شی، چه په ما باندې مین دی ، بیروخه‌ناز آغاز کا ، په داکښې د مرد هغه ښه مینه نه ځانه سره کا ، زیـان‌ودیولره ورشی . د مرد هم غم‌اندوه زیات شی ، په نه ویل کښې دواړولره سود دی . بل خپل دزړه رازهم ورته ویلی نه بویه چه راز ساتلی‌نه شی یو هلك یوه عورتینه دادواړه ګروهه راز ساتلی نه شی .

هلك یی د هلك‌والی په سبب عورتینه‌یی دناپوهی . داده چه عورت ترمرد زبون کوز پایه ده . دکوز پایی‌دستوردی چه په خبرو ځان ښه کوی . دا دنورو عورتینو سره کښېنی ، دخپل‌میړه د مهر خبرې کا ، چه میړه‌ګنه

په دا هسې مين دی چه له ما هيڅ نه پټوی . په داسبب یی نه خولی وباسی ، ساتلی دمباهات دفخر په‌سبب نه شی . او که نه دراز په‌پټول ښی پوهیږی . که یو سړی خون‌وکا وخپلی مور وته هغه راز ووایی، هم یې دخپلی مینې اخلاصی عورتـی‌وته ووایی ، مور به یې هغه راز په عمرونه وایی اوعورته به یی البته ووایی ولی چه ددې لویی نه شی څو وچاته دمیره مینه ونه وایی .

که په هغه خون ددې په ویل‌ددې میړه ومری دا به هم‌هسی‌راضی وی چه که له غمه فراق زه هم‌ورپسی‌ومرم ، په هغه ویل به دراز پښیمان اوغول په خوړل ـ اما څه کاچه ددې‌کار دغه هسی ؤ ، لویی په داکیده، نقص یی دعقل جبلی دی ځکه زوی‌میراث په ویش پوره برخه لورنیمه برخه شوه .

په دا سبب عاقلانو اتفاق په‌داکړی دی چه راز دې ورځنی پټ‌وی‌ـ نه دې لره بایده دی که هوښیاره وی‌چه په داهسی کارونو کار غرض‌لټول کا ، دیو سره خو مینه ، محبت ،خندا ، هوا هوس‌بویه ـ دکاله زیست روزګار ، اخلاص ، خدمت دادې په‌ځای لری ـ چه په څـه شان مرد راضی کیږی هغه هسی دې راضی‌کوی . مرد خود چه لایق او قابل وی لکه ددې پوهه وینی ، په هسی‌مقدار به ویل دحال د احوال ورتـه کا ، په عورتینو کښې هم لکه مردانوپه جوهر په فطرت کښې تفاوت‌دی.

هسی ددیو په‌جبلی جوهرکښې‌تفاوت دی ـ ځینی مردان چـه پـه فطرت ذاتی کښې کامل پیدا وی .بلا د هغو هسی عورتینو په ناقص فطرتو مردانو شه .

### بیت

چو از راستی بگذری خم بود　　چه مردی بود کز زنی کم بود

لکه ملوکان ملوك دی ، ورلره‌رشد او قابلیت بویه چـه پکښـې آراسته وی ، هسی د ملوکانو عورتی‌ملوکی دی . دیو لره هم رشد ، قابلیت بویه . که قابلی وی هســی‌دقابل سره به یی زیست روزګـار کیږی . او که نه د نالایق سره یې‌زیست غلط دی . هر کسبونه چـه ددیو دکمالیت دی جدو جهد دې کا،چه حاصل یې شی .

په نقصان کښې یې کمی دی‌دادې وپوهیږی چه مرتبی په درې شان دی ، یوه مرتبه دربو بیت ده ،بله مرتبه د نبوت ، بله مرتبه دولایت مرتبه چه دربوبیت ده هغه د خدای‌تعالی ده سړی که هرڅو کوښښ

وکا ، که مرد وی که عورتینه پـهلیاقت تر هغې مرتبې نه رسیږی ــ بله چه دنبوت مرتبه ده هغه باب هم‌مسدود شو ، کـه هر څـو شی ، پیغامبر به نه شی . بله مرتبه چـه‌دولایت ده په دا مرتبه کښې دوه قسمه واقع دی :

یوقسم قاصره . بل قسم متعدیه‌ـولایت په درې نوعه دی : یو ولایت بواطن چه تهذیب اخلاق په هغـه‌شـی ، هـغه د مشا یخـان دی ــ بل سیاست ظاهر هغه د امیرانو دی.بل د باطن د ظاهر هغـه د هـغـو بـادشا ها نـو چـه پـه سـیرت‌د چهار یا رانو دی ــ د عور تینـو په دا درې واړه مرتبو چه دولایت‌دی هـیـڅ کـار نـشتـه ، دری واړه دمردانو دی . په داسبب چه‌بنیاد ددې‌ولایت په اظهار دی، په نشرپه اعلان‌چه‌دولایت‌ښښتن‌دی،ظاهرښکاره‌لیده‌شی.دیو کارپه‌ستر په‌پرده‌پوښی حکم‌شوی‌دی‌مدارېې‌په‌دادی، په‌دادرې‌واړه ددې کار نشته ــ مګـر چـه

په ولایت قاصره داخل دی ، د حق‌تعالی ددرګاه نه ددیو برخه هم داوه ( یفعل‌الله ما یشأ و یحکم مایرید )نه دې هوا د شیخی کا چه موږه هسی شیخې پیرانې‌شوی، چه‌په موږپسی خلق ګرزیدی ، نه دې هواد بادشاهی دسرداری کا چه په تخت‌په مسند ناستی حکمونه موکړی ، جنګونه توری مو وهلی ــ دا دواړه‌د مردانو نصیب دی . ددې غرض‌پرې نشته لکـه مذکوری وشو ، داخـل‌ولایت متعد یه دی .

ددېو په ولایت قاصره کښې‌دخل دی ، پخپل کار دې کار لری. ولایت‌قاصره دادی : چه‌وپوهیږی چه‌دېودمردانوپیدادی، ترهسی‌حده‌چه‌که

بی‌خدایه سجده وبل‌چاوته حکم وی،په‌عورتینو به‌حکم‌ؤ چه‌وخپلو مړونو وته سجود کړی ــ ددېو په باب‌داهم‌وارد شوی :

( ایما امرأة ماتت و زوجهاعنهاراض‌دخلت‌الجنة ) یعنی هره عورتینه چه ومری ، میړه له دې راضی وی ،هغه به ننوځی په بهشت . هرګاه چه تر دا حده تاکید دی چه جنت‌دمیړه په رضا کښې مومی ــ دحقیقت خدای هغه دی چه دایې پیدا کړی ده،د مجاز خدای میړه شو .

اول د ملوك په کورونو آداب‌راه روش دخدمت لازم‌دی . دملوکانو خدمتونه ګران دی ــ که آداب یـې‌زده وی هاله به یې خدمت په ځـای کړی شی . ځینی طاعتونه ، عبادتونه‌دی چه مردان یې وکا په هغه وخدای

تعالی وته نژدی کیږی ، قرب مومی‌لکه جمعه ، جماعت نماز عیدین ، حضور جنازه عیادت مریض ، حج ،عمره ، جهاد ــ که عورتینــه هــغه طاعتونه ، عبادتونه نه کا ، خــودشوهر په خدمت پــه رضا منــدی‌ ودریږی او د فرزندانو په پرورش‌ودریږی لکه مردان په هغو طاعتونو، عبادتونو قرب د خدای تعالی مومی،دیو به یی په دا کښې بیا مومی ، داولیاؤ سره به وشمارلی شی . په‌داباب حدیثونه د پیغمبر وارد شوی دی . هغه یو ویشت حقونه چه دشرع‌په حکم د مرد په عورته دی هغه دادی . اول یــی دا دی چــه کــه‌خلــوت ، صحبــت لره یې بولــی عــذر و نه کــا ، د ده خــوی دې‌گــوری چــه پــه څــه شان ور څنی حظ حاصلوی هغه هسی دې ورسره‌جوړه شی ــ په دا کار کښې مردان مختلف دی به څو رنګه دی ــ دحکمت په کتابونو کښې له دې‌حاله

ډیر مــذکــور دی . دا ځــای واړه‌ګنجایش نه لری . ځینی مردان لکه حمار هسی خوی لری ، شهوت‌دآلت‌لری ــ که خره ورځنی تښتی هم دی پــه تمامه بی حیایی ور پسی زغلی.کــه خره یــی په سر سر په لغتو وهی دی پروانه لری خو پرې‌ورځی‌ځینی شرم ، حیا ، شهوت حسنــه ددماغ دلور یه لری لکه کوتر چه له‌خپلی کوتری اول بوسو کنار غواړی بیا وروستو خاته کا . دا ځای له دې‌هسی مرد سره عورته لږ نازوکا ، په مرد حیا غالبه ، شهوت حسنــه‌لری .

اختیاریې خور کا ، مینه‌یې‌ماته‌کا . که کوتری غوندې دا هم‌ورسره جوړیږی شرم ، حجاب یك لوختــه‌له منځه واخلی خو ټوله عشــق او محبت شی . عربا تعریف د هغی دی،هاله مرد تمام حظ ورځنی حاصل‌کا، هغه ځینی مردان چه له اوله په ناویووټکل (۱) شی ، سبب یې دادی چه دی شهوت حسنه لری ، جاه پرغالب‌وی ، ناوی نوی وی ، شرم وحیا دمخه څه چه ادا ورځنی ظاهر شی.په ده باندې هم شرم غالب شی ، وبله ته پاته شی . هرګاه چه هغه‌دشرم غوټه له زړه په لوبو ، په بازی‌ په ګستاخی له زړه پرانزی ، نــورتیار وی تر دانور قیاس بویه .

دویــم حــق ځان دی همیشه‌په خوشبویی‌ او په زینت ومیړه‌وته آراسته لــری ــ دریم بــی دمــیړه‌درخصت دې وچاته څه نه‌ورکوی . څلورم بی د شوهر له اذن دې دنفل‌روژه نه لری ــ پنځم بی د شوهر دحکم‌دې ترووره بیرون‌قدم نه‌کښیږدی‌شپږم دی ونامحرم ته ځان نه‌ښکاره

(۱) کټ مټ نقل شو خوښایې‌چه وټوکل وی .

وی-که ورور پلاریې وی هم دې تنهاپه خلوت کښې نه کښېنی - اوم وشوهر دې سخت ځواب نه ورکوی‌که ورته تروه خوږه خبره وایی اتم که میړه یی له چا څه غواړی یاسپك خویی کاله هغه دې اړوی نهم د شوهر مال دې په امانت‌ساتی.لسم په بام دی نه خیژی تر دریځو تررونن دی‌نه‌ګوری ، دبدو ، فاحشو، د بد خو یه عورتینو سره دی نه کښېنی ، لاپه تیره هغه چه دمردانو په جرګو ګرزی هغه خو دې پوره نه پریږدی .

یوولسم خدمت د میلمانه ، زیرمه‌دکاله - په دادې هوښیاره بیداره خبر داره وی. چه نیکنامی‌یې وی په‌هغه دې په شپه په ورځ مشغوله وی. دولسم د میړه په اولاد که دمیرمنووی، که دسوریتو پرستارودې مینه وی. چه لوی وی له هغو دی په ادب‌اوسی ، ورسره دې تنها نه کښېنی، نه لاس دې خپل ددوی په سر- په‌مخ کښېږدې ، نه دې ددوی لاس پخپل پلو بلو سوی غټ دی ورته‌نه‌ګوری . بی احجابه مزاق خبره‌دې ورسره نه کا .

دیار لسم که هر څو ښایسته‌وی یاله لویه پلاره زو ولی وی دښایست لویی ، دنسب لویی دې‌په شوهر نه کا . ځان دې لکه وینځه هسی شماری - وینځه که ښایسته‌وی خو بیا وینځه - څورلسم که شوهر یې درویش وی څه نه لری ،په خواره سترګه دې نګوری . هرچه دی ، ددې صاحب دی .

پنځه لسم هرچه وی په هغه‌دې روزګار کا ، قناعت دې کا ، له میړه دې ډېرنه غواړی .

شپاړسم که میړه یې بیمارشی‌په‌ځان دې خدمت‌کا ، ورته‌دې‌حاضره وی . په‌شپه ، په ورځ که دمیړه تریوه سر مه یې وینی ځی تربله زوې ځی ، دواړه وختی لاهسی دې نه‌وایی‌چه ماد میړه خدمت څه کړی دی .

حدیث د پیغمبر دی ، چه هره‌عورته چه دخپل میړه اوه ورځی وبله ته پسی هسی خدمت وکا چه‌میړه یی له خدمته راضی شی ، حق تعالی ددې په اووه اندام دوزخ اورحرام کا ، داویه کالو عبادت به بیا مومی .

اوه لسم د شوهر سره دې په‌طاعت مدد ګاره اوسی چه په وخت سره یی وعبادت ته‌ویښوی وآبدست‌وغسل و هرکار دې ورته تیار لری.

نولسم کور ، ځای ګا ، غولی‌مولی دې آراسته ساتی . لکه جارو لګه هرځه دکاله دې پاکیزه که یې کار وی پرې حاضره اوسی ـ که‌پخپله جارو په لاس واخلی ځای جارو کا ،حدیث دی چه هسی ثواب وګټی‌لکه د کعبی غولی جارو کا ـ د هلکانوپه خدمت ، په خوراك ، په پوښاك‌دې بیداره وی ، چه فرزند دحق تعالی‌امانت دی په ساتنه کښې یې ډیره نتیجه ده .

شلم چه میړه غایب وی لادې‌په پرده ، په حجاب ، په ستر مبالغه وکا ، خندا دې نه کا ، ښه دې نه‌اغوندی ، غوښی ، غوړی ، شوده ، پی شهوت انګیز څیز دې نه خوری.لکه رانجه ، نکریزی ، زینت دادې هم نه وی که وی په‌دارنګ دې وی‌چه زیب‌آرایش وایه نه‌شی. سندری، بدلی دادې نه وی ، حزن دلګیری دې‌پری غالب وی .

یوویشتم هرکله په هر وخت،په خوله ، په زړه دې همیشه دڅښتن خیریت له خدایه غواړی ، دعادې په‌ځان په ایمان کا ، والسلام .

## دولسم هنر داولاد دتربیت دی

اولاد یازوی وی یالور خو چه‌عورتینه په فرزند ډکه شی ، نوریې تربیت لازم شی ـ حامله عورتینه‌دې‌دروند بار نه اخلی ، تر لوړ دې نه ترپلی ، بادګین طعام دې نه‌خوری.

لکه مار ، مزری ، مهیب څیزدې په سترګو نه‌ګوری . چه زړه‌یی ورته وشی هغه څیز دی زرو خوری.

غم غصه ، جنګ ژړا دې نه‌کا،چه په دا څیزونو ښې چه مسطور شول که برعکس یې وکا د فرزنددزیان کولو ډاردی . ترڅلورومیاشتو پورته چه روح پرې ننوځی ، که دشوهر نه ځان مومی د مباشرت دې هم په بیارته اوسی ، چه مګر یـوبزرګ ارواح یې په شکم کښې وی، چه غوث ، قطب ، نجبا ، نقبا او تادابدال ولی‌الله د خدای وی ادب یې بویه ـ تولد شی ، نـاف دی پـه‌هوښیاره عورتینه پرې کا ، اول‌حال دې یوه عورتینه یا څوك محرم‌دهلك‌په غوږ کښې بانګ نماز ووایی . که بانګ نماز نه وایی یو بل نوم‌دحق‌تعالی‌دې دده په غوږ کښې‌ورواوروی.

مقصود دادی چه اول خبره چه‌په دادنیا دده تر غوږ تیریږی ، د خدای، درسول‌نوم‌دې وی‌غوغادی‌پرې‌نه‌کا ، چرګین‌سړی دې هورته نه‌وی. هسی دې نه نغاړی چه ګرم شی ،خولی شی ، بیایې زوربرمنډ کا ، په داکښې باد ووهی ـ هغه چه وایې‌هلك مرګبو وواهه .

مرګی نه وی ، هم داباد زحمت‌وی . هلك لاوم وی ، ددنیا په ګرم

په سرد هوا عادت نه وی ، مورتپاك‌پی وكا ، له بادېې ډېر محافظت‌وكا، څو چه برمنډ شی ، هوا پرې اثـروكا ، وژاړی ، پس په څووم ورځ شپین ومری . كه اوړی وی ، منـی‌وی ، پسرلی وی اصلا دې نه پټوی، هم هسی دې پرېږدی . كه بلیږدی‌هم هاله دې بلیږ دی چه اوه اتـه ورځی تیری‌شی . هم په نری څادردې‌بلیږ دی كه ژمی وی دساړه دماړه‌دې په ګر مه‌خونه ، كوټه كښې ساتی ،چه هوایې په یوه شان وی . نه‌ډېره توده ، نه سړه ، معتدله هوا په هروخت ورلره بویه ، چه په هغه یوه شان وی . چه نوم پریكوی ، دبادكسیر ملاحظه په نامه كښې ده ، سیخ دې تود كا پرې دې كښیږدې‌پرهار دې دنامه هسی پـه احـتیاط ساتی ، چه دوباره په وینی نه شی‌دزوی په زوكړه ښادی ، اما دلورپه

زوېږ هم دلګیری نه بویه ــ خدای‌زده چه بخت ، بركت په كوم كښې دی ، او هم دالونه دی چه مردان‌تری‌پیداكېږی . كه واړه زوی وی ، جهان به خراب شه ــحدیث درسالت پناه‌دی لواطاع‌الله الناس فی‌الناس لم یكن ناس دا هم حدیث دی من بركت‌المرات بنكرها بالانثی . اول چه لور وزیږی لامبارك وی . عقیقه ، سرتراشی مذكوره شوی ده ــ نوربویه دی څوش خویه ، نیك ذات صحیح‌البد نه وی . بده دایه دې نه وی ، چه د پیو تاثیر په تحقیق شته . لكه‌دایه ، هسی یې د پیواثر د هلك په طبیعت‌وشی . څو غټې وړې دانـې‌ختلی نه وی ، كوږ دنه دې نه كا . سپیركی شكرې سره سمی روبره‌كړی ، یویو ورغوی دې هر سبا په

نهاره وركوی . چه دانې پرې‌وخیژی‌دپښوتلی دې همیشه په نكریزو لیو لری ، چه فایده ډېر ده . په ستركښې به یې له د انوامن وی . چه ددرې كالونوشی ، له تیه دې پری‌كا.چه د څلورو كالو نو شی ، څلور میاشتی ، څلور ورځی ، په لوستن‌دې كښېنوی ــ حدیث درسالت پناه دې ( المراة فی حملها‌الاوضعها الافصالها كالمرا بط فی سبیل‌الله وان ماتت فیما بین ذالك فلها اجرشهید) یعنی عورتینه چه بار داره شی ، فرزند راوړی ، درضاع د پیومدت‌یې‌تمام شی ، ددې ثواب دغازی‌حاصل شی . كه په دامیان كښې ومری ،لكه غازی چه شهید شی هومره‌ثواب بیا مومی ــ د سبق هم چه اوستادلره ورشی په اول سبق دې وبخښل شی . معلم دې ورسره هنر كا چـه‌آزاریې نه كا . دده په زړه دې‌ورسره چلیږی .

كه هلك عالی فطرت وی تر اوه‌كاله پوری به سواد خوان شی . اول دې قرآن ولولی ، په قرآن كښـې‌پنج سوره او آیة الكرسی الرحمن

تمام عمه سپاره دې په یاد کا ، بیانحو ، صرف ، بیا فقه ، تـفسیر حدیث ، اقوال د مشایخانو ، علـم‌طب ، دادې لولی . العلم علمان علم الابدان وعلم‌الادیان ، علم نجوم‌واجب‌دی چه وکا ، له‌فارسی‌مثنوی‌المعنوی سلسلة‌الذهب ، نفـخات الانـس ،معارج‌النبوة ، شاهنامه ، سکندرنامه،
ظفر نامه داکتابونه دې مطالعه کوی.اخـلاق ناصری ، په تمام غور گلستان دې په یاد کا . قصاید غرا ، مقطعات،رباعیات چه یادیږی عربی فارسی دې په یاد کا ، تمام عمر که دتحصیل په‌کار کښې تیریږی سعادث دی او که نه داهومره چه وکښل شول داخودېوی ، چه ددین ددنیا نه خبر داری مایوس نه وی ، نقص یې په قابلیت کښې واقع نه وی .

**رباعی**

| | |
|---|---|
| در دایرهٔ این فلـك بـی پایان | برخورداری دونوع مردم رادان |
| یاباخبر از خود وزهرچه بـود | یابیخبر از خودو زهردو جهان |

دا خویې مرتبه په مرتبه دعلوم‌بخره ، دا هومره چه وشی دقابلیت ددایری به خارج نه وی . چه د علم‌خوند بیا مومی ، دعلم پایان نشته ، پخپله به ورپسی کوښښ کا . په داهومره علم چه ذکریی وشو مور پلار دې ورپسی بجد (۱) وی ، په ایام‌صبا کښې ځو تر بلوغ رسیږی — خوښ دې هم نه ساتی .

بلکه د ښه اغوستن دې غند نه‌ورته کاندی — چه د مردانو په ښه اغوستن څه کار دی . داد زنانو کاردی . د مردانو کمال په څه کښې‌دی هم هغه هنرونه دې ورته ستایی .سپك خوی ، سپك ناستی ، پاځېدل، دادې ورته غندی . خاموشی ، کتمان‌راز ، دادې ورته ستایی . دبدانو ، دبد خویو د صحبت دې ویزار لری.د هلك زړه لکه سپین کوره کاغـذ هسی دی ، هرچه پرې وکاږی هغه‌حرف پری پـریـوزی . داشرا رو دصحبت اثر پرې وشی ، اشرارشی‌چه داخیارو دصحبت اثر پری وشی،
اخیار شی ، که هرڅو په فطرت‌کښې‌پاك جوهر زوولـی وی ، د بـدانو دصحبت په تاثیر بدشی . لکه سره‌زر جعفری ، یا رابانی وی چه مس ورسره گډشی، ضایع‌شی، هر کارچه دی هم په داکښې دی . احتیاط کلی بلیغه مبالغه بویه . هلك ته نه‌ډیر لذیذ طعام همیشه ورکاوه شی. کله کله سپوره، وچه‌روټی ورکړې‌بویه . سرتور ، پښی برمنـډې ، غارمه ، ساړه وته گرزیده ډیره‌ورلره‌فایده لری . نازنین نازك مزاج دې

(۱) کټ مټ نقل شوه خومعنی‌یې څرگنده نه شوه .

آموخته نه‌شی . ماسته ، پی‌ که اصلانه خوری بهتریی ده . او که‌ ته ګاه ګاه دې شوده ، پی‌ شیرینی سره‌دې خورې .

په ګال یاپه دویم کال دوینی‌ړك وهل دقیفال ولازم دی . اوړی دوه فصله دی ، اختلاف د هواکیږی‌چه وینی وکاږی په منی ، په پسرلی چه هوا معتدله وی ، جلاب اخلی ،فایده به یی ډیره وی ، له رنځه له رنځوری‌ به یې امان وی ، شګفته‌طبیعت به وی ، ښه به وریږی . (١)

پس له بلوغه دې هــم دوینووکښل ، دجلاب کار په ځای وی . مرچ مالګه سره میده اوړه کړی ،چه مسواك کا ، په خوله دی مږی خوله به یی‌د هر علت پاکه وی .جایفل ، لونګ دې دوست لری چه سبا سبایی خوری . دا خو د هلك‌تربیت‌ؤ مختصر ووایه شو .

پس له شپاړسو کالونو کــه‌جوسه ناك وی ، د زوی واده بویه . د حکماء په حکم پس له شلوکالونوچه د منی قوت یی تمام په شل کاله په ځای شی . د افراط دخول ورلره‌زیان دی . د شهوت د انګیز ، دارو ورلره‌خوړل نه‌بویه نه‌په‌داوخت‌داخزانه په افراط شهوت ضایــع کا ، پس لره به پښیمانی ورشی . د ځوانی‌ نیشه دصورت زور ، قوت دستر ګو روښنایی ، دعوږ شنوائی د ځوانی‌نما ، د پیری‌ عصا هم دا خزانه ده.

**مصراع**

مپسند کین خزانه دهی رایګان بباد

په زر غسل کښې توفیر ددې‌خزانی دی‌نور تربیت دنوروفرزندانو واړه امانت د حق تعالی دی .

لــکــه د زوی تــر بیــت لازم‌دی مینه پــری بویــه هســی پــه لور مینه بویــه پــلکــه لو نــه‌لا حــقدارې دی . د هــلــك والــی د تربیت کار خو لکــه د زوی هسی‌د لور ، اما لور دې نازمین ساتلــه شی د عصمت ، د عفت ، دشرم ،دحیا ارشاد دې ورته کیږی . په لوستن خو قرآن د مسایلو کتابونه‌چه دطاعت عبادت وقوف یې تمام دفرایضو د سنتو ددین دچارووشی۔مرغوب رنګین حکایتونه ، شیرین بیانونه، اقوال دبزرګانو ، مشایخانوپه یادکا ، قصی افسانی هم زده کا، نردشطرنج دادې هم ښه زده کا ،دستنی کار لکه کښیده دا مهارت دې تمام وی ، د پختن ، درشتن ،دکاله داراستن ، دخپل ځان دآرایش خوشبویی دسازولو علم دادې ډیروی .

(١) کټ مټ نقل شو خومعنی‌یې څرګنده نه شوه .

دښځلو کار خو هم هومره ځوپه حساب په کتاب د هندسي درقوم وپوهیږی د شربت د مفرح سازول دې زده کا ، الوان پخول د خوږو کار دې زده کا ، په تربیت دوښود طعام د ښیښولو او پو هیږی د جامې په ښتل ، په سازول ، په ولل او په رنګه کول دې وپوهیږی. که دنقاشی دعلم څه زده کا ، ګنجایش لری ، څو نوع ښیدی دی واړه دې زده وی . په دا کارونو ښځې که آراسته نه وی نقصان یې دی. د جواهرو د مریو په قدر په قیمت دې پوهیږی. بزرګی دعا بزرګ سورتو نه دقرآن څو یادول شی هومره دې په یاد کا، د نظم قصاید ، غزلیات ، ابیات دی هم لږ ډیر په یاد کا ، چه د شعر په کار ښځې څه خووقوف یې وی .
دیوانونه دی نه لولی مګر ګلستان بوستان هر ګاه چه تر نه کاله ورسیږی ، دپلار دمشرانو وروڼو ، د ترونونه دې هم په ادب اوسی ، ګستاخ ویل ناست ولاړه دې نه کا ـ چه په ځورلس کاله ورسیږی وخت یې د حق دپوره کولو دی . په دا حال چه راشی بویه چه څلور ستره ونیسی .

اول ستر دځان چه سایه یې هم نامحرم ونه وینی ، بل دغوږوچه دنامحرم مذکور نام ورته څوك وانه خلی ، بل دسترګو چه هسی په کونج ښې دکور ښینې چه نظریې په چاونه لګیږی . په لوړ ځای دریدل ، په بام ختل ، په غولی ښې ګرزیدل دادې هر ګز نه وی. څلورم ستر دژبې چه بې موره خوره ورو ره یا محرم خدمتګار خبرې د چا سره ونه کا ، نه دا څلور ستره په ځای شول ترزوی به نیکبخته لور که د پلار په کور ښې وی ، دالوی ددین سعادت یې و ګاڼه . په کتاب ښې ښځلی دی چه لور هغه ښه ده چه هم شله وی هم ګونګه وی ، مقصود هم دغه څلور ستره دی. که یې ټینګ کا هم شله، هم ګڼه ، هم ړنده هم ګونګه شوه . دا څلور کارونه به یې هاله روزی شی که ناستی د هیچا سره نه کا .

خوی د ښها د ناستی واخلی ، که پاکه ښینی له هغو سره وی چه دغه څلور کارونه پکښې وی، نیکخواه یې وی نیکخواه څوك نشته مګر مور پلار ، خور ، ورور ، ترور ، خپله خیلخانه په غم په ښادی سره شریك په شرم سره ګڼه ، په دا ښې هم ښیا فرخ دی چه هوښیاره عاقله وی له هغې سره دې ښینې . که کم عقله وی که خپله وی هم ورکه دې شی .
څو توانیږی په دا کار دې کوښښ کا ، د کلی یا دبل ملك ښځې دې هسی شماری لکه نامحرم. وځان وته دې نژدې هیڅوك نه پریږدی. هم دا سرشته دې په جل والی ، په واده همیشه په ځای لری. لکه عورتینه ده هسی دې عور تینه وی ، چه آواز ، پوښاك یې څوك په سترګو

ونه ويني . تمام عمر دا سرشته پهځای‌بويه ، تر هغه‌وخت‌چه دفرزندانو
مور شي ، د دولت د خليخاني‌ميرمن‌شي ، د ميږه د لاسه تربيت حاصل
کا نور چه شو هر ورته فرمايي په‌هغه دې عمل کا ، خور لور لره بايده
دی چه ژوندون د پلار کره په جل‌والي په‌دا طريـق کا، دا ځای دمور
کار دی چه دا خليفه ورته شي . که‌تجاوز وکا ، سر زنش ، تنبيه کول
ورلره لازم دی . ډېر دې فرزندشلق‌کاوه هم نه شي ، شوخ چشم شي ،
وهل هاله چه ترپند ترنصحت تيره‌شي وزی بربنه دې ناله نظره دې
واچوی ، که په دا هم نه شي هاله‌ږهل دی ، وهل هم هسی چه دهغه
دحواس زيان يې‌نه وی . چه لورودونه شي ، وکفووته دې شي . که
ممکن په نژدې خيلخانه کښې نه وی‌چه په اصل په نسب کږلی نه وی ،

ددين د صلاحيت په حليه متحلی‌وی،وهسی سړی دې ورکوله شي . چه
ډېر ترځان په قرينه کښې تيروی ،دهغه سره هم که ممکن وی نه بويه
چه ډېر کوزوی هم نه بويه ، لږ کوزپاس سره روغه ده ــ د لور په ودول
شهرت ډېر بويه لکه سندری ، نقاری‌ډېر پخول ، ډېر استول که دخپله
لور يه توان وی هم ، خو دزوم دزوم‌دلوريه اخستی بويه ، هسی ځويی
توان وی ــ آزار په هيڅ توك ورتــه‌رسول نه بويه ، دخويښ د لوريه
دخپله لوريه هر رنګه چه کار ښه‌کېږی ، هسی کړی بويه ــ مجلسونه
صحبتونه ، خورول ، اغوستل راګ‌رنګ صرفه نه بويه ، د زوی برخه
دپلار کره هميشه د لور غريبی خوهم داورځ چه‌د بابا پــه مال به ددی
لوی سر فخری شي . دواده شهرت‌په شرع هم روغ‌دی، کــه پس لــه

واده کولو ولورته که ډېر څه ورکول‌شي ، هسی نه دی لکه دواده د کار
خرڅ دلور دواده جوړه دناوی والی‌هسی دی لکه په قديم ددېو په‌خانه
واده کښې هغه دود شوی ، دود دې‌خپل نه بدلوی . لکه دپښتانه دود
دکښېده کميس ، د پايځود سرکاه،د مقنع (١) دادودونه دې نه‌پرېږدی.
هرکله چه په داجوړه واده‌شي‌نوری مهينی جوړی دې په زر ګونه
ورسره وی چه يــی رضا هغــه دې‌اغوندی . لکه د جل سپين پرتوګ
څنې وربل دادود دې هيچيری نــه‌بدلېږی .

لورچه واده شي دعادې ورکړه‌شي ، نصيحت ورته دادی‌چه دشوهر
په‌خدمت کښې‌دې‌په رضامندی‌ځی ترداحده‌که‌شوهريی‌شراب خوروی‌دادې
هم ورسره شراب‌خوره شي چه څه‌ورته فرمايی هغه دې کاندی .

---

(١) ددی لغت معنی نه معلــومېږی .

**قطعه**

| | |
|---|---|
| کـه یـار دې شرابـی دی | نه هم لا تر ده بتر شـه |
| کـه دی کفـر اختیار کـا | نه هم ده سره کـا فـر شه |
| کـه دی واو رتـه زغلـی | نه ترې یوقدم پیشتر شـه |
| کـه دا هسـی و نه کـړی | دروهـه خاوری‌دې په‌سرشه |

که شوهر عالی فطرت وی خواهش به یی د قصه ، د افسانی ، د شعر د بیان وی هغه دې ورتـه‌چه مناسب د هر وخت وی وایی . په‌نرد په شطرنج‌دې ورسره‌مشغولی‌کا ، په مردانو باندی ډېرې اندیښنی غمونه ورځی چه ښه مصاحبه عورته‌لری ، په یوه په بله یې غم غلطوی، ډېر ښه کار دی .

د معصیت له کاره دې په هنر هنراړوی . د طعام په کار دې بیداره‌وی د میلمانه زیرمه دې از قسم غلات ،فواکهات، حنات‌اشربات تنقامهیالری چه که شوهریې کور نه وی خاطرخواه په‌ځای دمیلمانه دې‌اول حاضری ورشی، لکه میوه او غیره چـه ځـوطعام پخیږی .

لوزی کلی شوم ـت نه وی (۱) دطعام لازمه لکه دستار خوانونـه ، خوان پوښونه ، یا خونه ، رکیبـی‌دادی واړه په ځای وی چه فوت فـرو گذاشت په هیڅ کښې ونه شی .ځای ځایگاه ، فرش فروشـ دادې آراسته وی هر چه د شوهر نیکنامی‌کیږی ، په هغه دې محکم ولاړه وی چه‌نیکه خیل خانه به یـی پـه داکارونو ښه یاد شی . تر هرڅه‌افضل د شوهر خدمت دی . ښه عورتینه‌هغه ده چه هم د میړه عورت وی ، هم یې مصاحبه وی ، هم یې طبیبه‌وی ، هم یی باور چی وی هم یـې درزی هم یی دوبی وی ، هـم یـې‌وینځه هم یی ډمه مطربه وی ، بلکه هم یی څو هړی وی . چه دا وویل‌شول بس نور د شوهر دخویښانو سره‌دې هسـی وی لکـه دپلار پـه‌خیلخانه ، په‌غم‌ښادی ورسره‌شریك

وی ، د خوانبی خدمت دې هسی کالکه دخپلې‌مور که دشوهریې‌سوریتی خدمتگار وی واړه دې ښی ساتـی،خلقت مرحمت دې له هیڅـا دریـغ نه لری . که د شوهر نه یې زړه بدشی د پلار وکاله وته دې نه وایی ، نه دې د پلار کور سیله کا ، چه په‌سیله کښې روزگار بد شی که ترهر څه تیر شی ، لاس چه مات شی‌غاړی‌لره ځی . سیله خودی نه وی لوردې هرکله دپلار کور په ښه یادوی . که‌خپل ډېر لری د پلار د ورور ، دمور

---

(۱) ددغه عبارت معني څرگنده‌نه ده .

د خور خلیخانی په ورکړه یې سرلویی کیږی ، اول خو دی مرګ د زوجی تر زوج دوړاندې وی او که نه شوهریې ومری ، قضا رضا ده ، جزع فزع اری دې نه وهی دشرع په حکم دې کار کا په یوه ناره دې وژاړی .

## غزل

که ریښتینی محبت لری مه ناړه　　په یوه -ره بیل شوی یار وژاړه
درسا ویشتلی کله توان درېغ وی　　په فراق کښې ناری مه وهه له باړه
په معنی کښې جدایی نشته وصال دی　　دآشنا په غم کښې خوښ اوسه بل ویاړه
په هجران کښې هغه هسی شان وصال شته　　لکه څوك له خپله یاره لاس تر غاړه
دادیدن لکه په پټی سترګی کیږی　　دادیدن له وازوسترګو نه مه غواړه
لیلی پلارکړه په سل پردی کښې ناسته　　مخا مخه ومجنون وته ولاړه
پس له مرګه هم جدا نه وی ریښتینی　　په یوه لحد کښې ورشی سره دواړه
دریښتینی مینی ډار دزوال نشته　　چه ریښتینی پت لری سلام په واړه
دیار پت دې د خوشحال له دله نه ځی　　دفانی دنیا خوښی که لاړه لاړه

پت پالل شرط دی خصوصاً دملوکانو د لوڼو ، چندڼ خو یو ځل په مخ پوری کیږی ، د جمبی ګل خویو ځل د کونځلو سره پریوځی ، سندری خو یو ځل په جل ویلی شی درسالت پناه حدیث دی په داباب انا امام اسفها المحدین کهاتین یوم القیامه واوحی بالوسطی والسبابه امراة امته زوجها ذات نسب و جمال و حسب نفسها علی تیاماها حتی ماتوا و ماتوا .

معنی د حدیث دادی چې د لویه ځایه څوك وی ددې میړه ومری صاحب جماله صاحب نسبه ، دابل شوهرو نه کا ، د فرزندانو مور وی ، د شوهر غم هسی پرې ولګیږی چه دمخ ګونه نوره شی ، توره سیاهی لکه تر سیری په مخ وزغلی ، هغه عورتینه به د ماسره هسی بهشت لره سمه ځی لکه وسطی او سبابه ګوتې چه سره سمی دی ـ وسطی میانه ګوته سبابه ورپوری ـ هغه چه وایی چه کونډه دې میړه وکا یعنی په شرع میړه روغ دی ، که یی کاندی ثواب په دا کښې دی لکه چه پیغمبر حدیث ویلی دی . د پت پالل دلویو کورونو طریق هم دادی ، شرم ننګ ناموس په دا کښې دی .

نور دې زیب و زینت ، آرایش مطلقانه وی ، نه دپوزی ، نه دغوږونو سپینی جامی د طاعت د عبادت اغوستن دې وی ـ همیشه دې په عبادت مشغوله اوسی ، د شوهر مغفرت دې له خدایه غواړی .

خسروا در عشق بازی کم زهندوزن‌مباش
کـز برای مرده سوزد زنده جان خویش را
نور توفیق له خدایه والسلام .

**دیار لسم هنر تادیب د خدم ، دتوابع لواحق**

اول تربیت د مریونو دی ، ښه‌خانه زاد مریونه غلامان لکه فرزندان هسی دی د هغو تربیت په مثال‌د فرزندانو دی ، فطرت جوهر دي معلوم کا ، چه په څه جوهر واقـع‌شوی دی ، په هغه کار دي منسوب کا ، چه خانه زاد مورثی وی دهغوکار دي ترنو خرید و بهتر وی . چه دتوري وی هغه دي مقرب کا ، اعتبارددي ورکا ، په بخښښ دي تر نورو ممتاز کا ، هسی دي معززش چه که‌دلښکر سردار کاوه شی څوك دده دسرداری عارنه کا ، کورونه ، لوڼه‌خویندی عزیزی کورتی (۱) په واړو دي پاك نظر کا ، مګر چه په خانه‌زادو کښې یې خوښه شی په خپلو پرستارو دي حاصله داخلـه کـا ،آسوده دي ساتی ، چه ددی طایفی سرومال په کار دی ، ښه مخلصـ‌غلام خدای وچاورکا ، په محل کښې

دداخلې خدمتګار دواړه ترمیرمنو په‌ادب وی ــ که ډیر تعلق خاطر پرې لری جدادی‌ساتی‌چه‌میرمنی‌هیچیری‌ددی‌په‌نازپه‌نیاز خبری‌نشی‌که‌چیری‌پری خبرې شوې غیرت جبلی دعورتینوډیر دی . بیا دلوی کور سړی کـه حفظ وکا خو ښه ، او که نه وینځه‌میرمن سره لکه آس او خر هسی تفاوت لری ، دآس دوړاندې خرهیڅ‌وجودنه‌لری ، البته واربه پرې جوړ کـا د خـره آب بـه و باسـی .هاله ده لـره هم په هیڅوجه نـه بویه چه د وینځی دپاره به میرمنی‌سره څه وایی ــ په خندا په تحمل دي تیره کا ، ددیو هسی کارونه څوبرداشت کا هوسره بهتر هم ده لره فایده لری هم خدمتګارې وته فایـده‌ده . بل ساعت چه ډېر د میرمنی‌قهر سوړ شی ، پخپله میرمن چه شـه‌میرمن وی ، هغه خدمتګاره به دخپله لاسه ولمانځی . که کینه سره‌پریوته‌دمیرمنی د نظره دې البته غایب لری. هرګز دې خدمتګـاری پـه سر نـه‌خیژوی ډیرې ښې. خدمتګارې سره

(۱) کټ مټ نقل شو مګرمعنی‌یې ځرګنده نه شوه .

یوه بده میرمن دې نه برابـروی .چرې سپین زر چرې سره زر که دا هم نه پوهیږی هغه میره به هم ځمیره نه‌وی .

نور حشم نوکران ، کورونـه درعیت د همسایه ، بنه اخلاصی نوکران دې هسی ګوری لکه خپـل ځان ـ د فرزندانو د ورونو نه‌هسی کارونو نـه شی لـکه ددیـو نـه ـخویندی ، لـونـه ، زهـوزاد دی هسی ګنې لکه خپلې خویندی لونه‌زهوزاد ، عزت ، حرمت ددې واړوپه ځای لری . که ورکـول وی ، کـه‌بخښښ وی په ارت زړه دې ودیوته وی ، چه خپله خونبها خوری . لـه‌رعیت دې رعایت دریغ نـه لری ، مهر دې په واړو باندی هســی وی‌دباران . د هرچا په خوږ دې خوږ وی ، په غمخواری دې وی ، اما په‌سپاه ، په حشم دې هسی وی لکـه جویبار چه باران هم پرې وریـږې‌هم نهر ، ولې رود بارونـه پـرې چلیږی . دهمسایه حق‌په روایت‌لازم‌دی . د ملوکانو همسایه هغه دی‌چه نور ملوکان ودیوو ته نـژدی وی‌دهغو سره دې سلوك ملوك لری . که یی بدغواړی هم چه په میشتـه‌ورنژدې وی مدارات دې کا .

آسایش دوگیتـی تفسیر این دوحرفست

بادوستان تـلطف بـا دشمـنان مـدارا

په دا عالم کښې چه خدم‌وحشم‌دی که له چانه تقصیر واقـع شـی دسابق خدمتونو په حق معاف‌کړی‌بویه ، معاف دې شی او که نه په زندان دې مقید شی مرګ کشتن ته‌یې هوس نه بویه ، مګر چه رخنـه ګرد ملك شی .

## مصرع

رخنه گر ملك سر افگنده بـه

چه تقصیریې په ځان تحقیق‌نه‌شی ، دچا په خوله باورنه بویه . ساعی تمام ډیر دی چه پخپله معلوم‌شی ، فکریې ژر بویه .

## بیت

علاج واقعه پیش از وقوع بایدکرد دریغ‌سود ندارد‌چورفت‌کارازدست

که غلام نافر جام شی چاوته‌بخښلی بویه . دا ذکر به وړاندې

هم ووایه شی . دا ځای خو داهومره کافی دی . د ملك کار په سیاست دی
مذکور به یی راشی . والسلام

**څلورلسم هنر داسباب دمعیشت**

دری ځیزه دی : ماکولات ،ملبوسات ، مسکنـات ، خـوراك ،
پوښاك او تاك . دا درې توکه هرچالوه چه ځان لری په کار دی . واړه
حیوانات داکښې داخل دی . ترآدم،تر وحوش ، تر طیور تر بهایم پخپل
قدر دهرچا وظیفه مقرره ده. دوحوش یی وپښته د پوښاك په ځای وکړل.
د مرغونو پرونه ــ چا خوراك غوښی،دچا دانه مانه ــ او تاك هم دچاغارونه
دچا بورې ، دچا ونی ، د چا جالـی په دا دری کار کښې چه نفس لری
واړه سرگردان اومحتاج دی . دحرص دغلبی په سبب دزوروررو دکم زوری
کار ښه ــ کمزوری خوراك دزوروړشی. لکه مزری ، لیوگان چه روانات
(۱) ، بهایم ددیو خوراك شول ،دبازونو ، شهندانو خوراك تاروزرکې
غیره د مار خوراك شلانهې ، مږك ،چنهخی دا هسی هـر څـوك سره
حواله دی . هیڅوك په شپه په ورځ له دې غمه خالی نه دی . په دې کښې
څوك لاپه حرص گرفتاردی لکه کفتار،لنگور، بیزو، مږك ، میږی ، عنکبوت
زبون خلقت د عنکبوت دی خو نـه یې گوره چه په څه آرایش یې سازه
کا ، مچ ښکار کا ، رایی وړی پکښې قدید کا میږی گوره چه سوړه وکا
دانی ورټولې کا ، دانایی ، دروزگارزیرمه ، زیرکی تر دا حده ــ چـه
باران وشی دانې نمناکـی شـی ،ورچنی نمروته را وباسی وچوی یی
دپشکال د نم دپاره هره دانه نیمایې کا چه بله ضایع به شی ــ تردا پورې
دانور قیاس کړه په داکښې چـــه درنده دی تهور لری ، هغه مظهـر
صفات جلال دی ، چه بل رنگ دی مظهر صفات جمال دی . فرشتی هم
داخلی په داکښې دی . سړی اشرف مخلوقات دی ، جامع دی پـه واړو
چارو ــ هرچه یو په واړه کښې دی هم مظهر صفات جلال دی ، هم مظهر
صفات جمال دی . پـه چا بانـدی صفـات جـلالی غـالب وی ، پـه
چاباندی جمالی . عالـم اوستاد ،مرشد ، پیر هم دې کار لره په کار

(۱) ښایی حیوانات وی .

دی چه دا صفاتونه مبدل کړی .تبدیل اخلاق په اتفاق ممکن دی چه بهایم دسباع خویونه وی ، هغهذمیمه بلل شی ، دانور حمیده ، انسان لره اعتدال په کار دی .

### قطعه

آدمی زاده طرفه معجو نیست وز فرشته سرشته وز حیوان
گر بدین میل میکند بد ازین ور بدان میل میکند به ازان

غرض زما بل ؤ داهومره پهواسطه ویل وشول . مدعا داده چه دادرې توکه چه چاره ورځنی نشته،شاه گدای لره په کار دی ، واړه په داغم گرفتار دی . اول ماکولاتملوك لره بویه چه طعام دده دوجه حلالې وی ، قصد همت ، نهمت دېهمیشه داوی چه حرام یې په سفره څوك ونه خوری ، ثواب یی نشته ،بزه کاری بلکه بیم کفر دی . پس دطعام دخوړو فاتحه ، حمد ثنا شکربایدهدی. پهحرامطعام باندیدانشته که څوك یی ووایی به یې گنی ،مشکل کار دی . بلکه ددې هسی سړی په سفره چه طعام یې صریححرام وی ، خوړل نه بویه ـ هغه

لره چه قرض واخلی طعام دې پخویهم ځان لره ، هم مهمان لره ، طعام خویی په فتوی حلال شی . پس لههغه هرچه قرض دار ورکا ، په دا کار کښې دې عمل په فتوی کاتر تقوی نه رسیږی . حلال طیب که غواړې وجود یی عنقا دی . ملوك دېپه ځان طعام په حکم د حکیم خوری. هره غذا چه دده د مزاج موافق وی ،حکیم ورته ووایی هغه طعام دې خوری ، د خپلې اشتها تر مقدار دېکم خوری . که اشتهایی د سیروی، دی دې دری پاوه خوری . معجوناتاثریات د معدی دصافی ، دادې دوست لری . په تیره خو مربایی‌هلیله ـ پرورده طعام دېتنهانهخوری

برکت دطعام په دوه توکه کښې دی‌یو چه ډېر طعام شریك وی ، بلچه لوی لوی ښانکونه ، تباخونه پهسفره کښېښول شی . دطعام سره دې مالگه تر کاری ، مربا ، اچار ،ماسته ، ملغولی لازم وی . ظروف دې مسین یا چینی یا لرگین وی .د سرو د سپینولو ښنی دې هرگزنه

وی . امام محمد غزالی رحمةالله‌علیه‌تر نمکدانه پورې مبالغه کړی ده ، چه دزرو دې نه‌وی . په‌ځینوروایتونوطشت ، آفتابه روغ دی . دطعام دپخولو اسراف نشته ، چه څوتوانیږی هومره دې ډیر پخوی ، چه دطعام په پخول کښې صرفه نشته .هرچه صرفه کا دون همت به وی . د مردانو په شولان کښې د هر چابرخه شته اول سړی چه عزیز مکرم وی بیا نفر ، چاکر ، وینځه ، مریی ، غریب غربا ، همسایه بیا سپی پیشو ، چرګې ،کوتری، مرغی، مچ، میږی چه ددیو سفره وځنډله شی ، دهرچا برخه‌پکښې وشی . هغه سفره دنامردانو وی چه خو هومره وی لکه سکښتی‌کمیس .

## مصراع

چوحق بر تو پاشد تو بر خلق پاش

د طعام ډیر تکلف هم نه‌بویه،خو ډیر بویه چه‌وهرچاوته ورسیږی. یوه لنګری طعام ازروی تکلف په‌شل په لس روپۍ کیږی . دانه‌بویه په شل لس روپیه د مجلس طعام‌کیږی . مګر د هغی (۱) میلمه وارد شی هم طعام خو دځپل روش ښه‌دی.درخانه هرچه باشد مهمان هر که مهمان باشد ــ بل پوښاک د پوښاک‌دې هرګز تکلف نه‌وی ، ساده‌پوښاک دې وی چه د ابناء جنس او دده‌تفاوت لږ څه وی چه دی په داتکلف شی الناس علی دین ملو کهم نور به‌هم ګرفتار په داتکلف شی . داکار چه دزنانو دی مردان به پرې ګرفتارشی .

## قطعه

روی زیباو جامهٔ دیبا        صندل‌وعودورنګ‌وبوی‌هوس
اینهمه زینت زنان با شد        مرد را کیروخایه زینت‌بس

دمردانو زینت په دانه‌وی ،زینت یی په ځوانمردۍ ، په نیکنامۍ دی . کوښښ دې هغه کا . بلکه داکار دې د ملوکانو د زویو هم نه‌وی.

(۱) دلته یو لغت پاتی دی خونه لوستل کیږی .

چه هلکان وی بدعادت به شی ، پهلاس دلی به وی ، مهر داری گوتـه دسیم نور څه هیڅ نه وی د آس‌زین‌ساز ، د توري دډال زر مرصع دي وی . په وسله ، په آس په درسته ،ترکش ، فرش فروش داتکلف بویه زر زری مطلا جامی ، بخشش څـوزيات قيمت لری ، رنګ لری هومره بهتر ـ داختر په ورځ د جمعی نوی‌مهینه ، جامه بویه ـ خـوش بویی ښووی هومره اعلی ، طاهر خوبی‌لری‌هم ثواب لری. درست مجلس‌دصحبت دضیافت د ملوك په خوشبویی معطربویه ـ ننه ، ورچنی خوشبویی عامه بویه ، ترساوو تر پاسو سود هرڅوك‌د ملوك خوشبویی وی .

شمله او دستار د شریعـت‌پریږدی ، د جنګ په ورځ دي نمایان شمله پریږدی . بلکه جامه دي هم‌نمایان وی یا سره توره هر رنګه چه وی ، چه په هغه سره یی خپل‌لښکرپیژنی . بلکه دلښکر دواړه سردارانو دي‌جامه نمایانه‌وی . زغره ، جوشن،خول که مطلا په تکلف وی جایزدی.

بل اوتاك یعنی د استوګی‌ځای‌خونه ، کوټه دیوان خانه ، خلوت خانه ، مهمان خانه ، بل مسجدداواړه‌عمارت باله شی . سرای قلعه هم ددي قسمه دی ، خلوتخانه دي دعیال‌دخونی ، دديوان خاني ترمیان وی ، مهمان خانه علیحده په مفاصله تـردیوان خانه وی ، نه ډېر لری نـه نژدي ، چه د میلمنو آواز تردیوان‌نه رسیږی . دیوان خانه دي هسی لری وی چه دمحل دعیال ، دلوی‌دهلك آواز تري نه رسیږی . خلوت خانه به تردا میان وی . هر تکلـف،نقش نګار چه وی په خلوتخانه دي وی . باغچه دي هم د خلوتخاني دصحن دي وی . دننه د کوروڼو ، دعیال دخونو دي هیڅ تکلف نه وی،ساده سیده دي وی . دیوانخانه دي دهغه څخه بهتر وی .

دمهمان خاني ځای دي وسیع،غولی لوی ، حجره ، ډېري پکښـي طبیله دادي هم بی تکلف وی ، چه‌میلمانه پکښي فراغت اوسی ، آس یی ځای شی . جدا جدا په هره‌حجره‌کښي ځای ونیسی ، وخوراك دي په دیوانخانه کښي وی . چه ښه مکرم‌میلمه وی مجلس دي په خلوتخانـه کښي وی .

په لږو سړیو بیا دې و دیوان‌خانې یا مهمان خانې لره ځې فرش فروش دې هم په داشان په تفاوت‌وی ، د خلوتخانې په هغه مقدار ، خلوتخانه چه قریب د محل وی ،دمحل د عالم نشست برخواست هم پخپل وخت کیږی . پــه دا عمارت‌کښې بهتر کار د قلعې د کوټ دی ، یادباغ د مسجد ، دسرای قلعه ځومحکمه وی چــه څه پر خــرڅیږی هومره ځای لری . باغ هم خیرات‌جاری ، څو ډېر باغونه وی هومره بهتر دمسجد نقش نګار دې نه‌وی،استحکام دې ترحده وی چه په تردد دقیامت جنبش نه مومی . پل رباطلازم کارونه دې چه نفع د خلق‌الله لری ، څو لاس رسیږی ساز کړی‌بویه ، دکوهی ، دچاه کار بهتر تر هرڅه . والسلام .

## پنځه لسم هنر د زراعت

یعنی دهقانی اګر چــه واړه‌رعیت چه زراعت کا ، ګویا چه واړه د ملوکانو دپاره دی ، اما ثواب په‌داکښې دی چه خپله خاصه مزرعــه دې هم کاندی . مقصود می دادی چه‌ددې هنر نه بیرون ونه وزی . حلال کسب‌دی . دخپل‌زراعت ډېرافضلیت‌لری بلکه نفقه دې دعیال هم دخپله کشت‌و کاره وی ، چه ډیر ثواب‌لری،بل دا چه ددیو دمزروعات نفع‌وچاوته رسیږی تر آدمه ، تر موره ، تر ملغ‌لکه مزدور ، جاریه غیره خو شه‌چین، چه حلال خوری دحلال مال نفع یې‌وچاوته رسیږی، نخښه دسعادت ده.

حدیث‌ختمی‌پناه محمدرسول‌الله (ص)دی چه حلال خوری ، د حلال مال نفع یی وچاوته رسیږی ، صحبت‌د صلحاوو سره کاندی ، لمونځ پــه جماعت ګذاری دا درې واړه توکــه‌نخښې د سعادت دی ، پس حلال‌مال ددهقانۍ دوجه ښه میسر کیږی . په‌داکار تقید بایده دی . دهقانۍ لره څو کاره بایده دې یو ښه صالحــه‌مځکه هغه ښه وی چه پکښې غوښت ښه کیــږی . پــه هغه مځکــه چــه‌غوښت ښه شی ، هر قسم غله به پکښې ښه کیږی ، مګر بی شولو چه‌دشولو مدار په ملك نه دی په ډېرو اوبو دی .

بل دانا دهقان په کار دی چه‌مځکه‌سره پیژنی، موسم‌دکرلوپیژنی،

تخم‌پیژنی چه‌داعلم‌ښه‌لری هغه‌سړی‌دي په دا کار نصب شی ، دی دي سردار وی نور دي چاریه کار بزگروی . مریونه غلامان دي ورسره تعین شی ، که داشان سردار خپل مملوکوی لاښه ددهقانه لږه مځکه چه ښه سازه شي بهتر تر ډیره ملکه چه‌ښه سازه نه شی . مدار په شدیاله دی **پس تر سه هلی** (۱) چارچه‌تخم‌کاره شی ، شدیار غارمه ساړه‌خوړلی وی ، تخم په موسم پرې وکرل شی،هومره **عبره** (۲) کا . د زراعت‌کسب د مواشی ، دسوداگری کسبونه په‌کیمیاگری شمارلی دی . دیوی دانی اویه دانې بل زیاتی کیږی کومه‌کیمیا گری تر دا به ، مدار د سپاه، درعیت ، د هر کاسب په دا کسب‌دی . ددې کسب لوازمه د هر قسم

موجود بویه ، د مزارعانو حق ومزارعانو ته هسی رسولی بویه چه په دا کار کښې سرگرم وی . باغ پالیزهم ددې کسب سره تعلق لری ، په حرص تمام دي داکار کیږی . حفرنهر ، دونو جاری کول ، دکوهی کندل ، باغ پرې مرتب‌کول داکارونه‌په عمر جاوید شمارلی دی . مرد به هغه وی چه فهم یی په دا کارونووی ، په حیات په ممات په کار دی . مال مواشی هم په دا وتیره هره خواموال بویه ، غوا غیله ، میښی ، اوښی اما داسپو گله د میږو رمی‌غیله‌داخو لازم بویه . گله بان ، چوپان دي پرې مقرر وی بخره حصه دي‌مقرره وی ، علوفه دې وی . چه بخره

په مال کښې مقرر وی په هغه لالچ‌به پرداخت د مال لاښه کا ، یوسړی دواړو به سر داروی دواړو په احوال‌خبر داروی ، هر چرته چه علف‌وی په هغه لوری دي مال ورپسی‌گرزوی.په یوه ځای دي مال نه لری . چه په علف زار په مرغزار پسی گرزی‌هومره بهتری‌لری . سواتر دادرعیت په حال دي خبریږی . چه غوایه یی‌نه وی دخپله ماله دي غوایه ورکوی، چه تخم یې نه وی تخم دي ورکوی‌چه خوك سقیم احوال په رعایا کښې پاته نه شی . که خوك په رعیت‌کښې‌وناته شو ، مال یې تاراج شو ، مدد دي ورسره وکا ، دستگیری پرې‌لازمه ده .

(۱) کتې متې نقل شو ښایې( پس تر خه هلی چاری ) وی .
(۲) ددې کلمی معنی خرگنده‌نه شوه .

که دده قابو ورته جوړ نه‌وی‌دهغه دپاره دې په واړه رعیت ، قبیله ، اولس چنده وشی . په لړلړچه په چاواچوی چنده وکا ، هغه پرې خبر پروا دارهم نه وی ، دهغه‌تاراج شوی کار به تمام وشی ، فرزندان زهو زاد به یې آسوده شی.په حلاله دنیا چه دستگیری د درمانده ګانو کیږی ، په ښه ځای خرخیږی‌هغه مزرعه د آخرت ده . الدنیامزرعة الاخرة .

په دا هسې دنیا پسی مې‌بویه،په هر شان چه وصول کیږی قصدیی ثواب دی چه وچا و ته فیض ، فایده‌رسیږی ، دین‌دنیا هم په‌دادنیا کښې دی . چه حلاله دنیا نه لری ګویا چه‌عقبی نه لری الفقر سوادالوجه فی‌الدارین. ددواړوجهانو نومختورګی‌په نیستی کښې دی .

هغه چه رسالت پناه فرمایلی‌دی چه الفقر فخری ، هغه مراد بل دی یعنی تعلق دی په دنیا نه وی ،دافقر اختیاری دی . که ډېر مال‌لری چه اختیار یی دا هیسی وی هغه‌فقیر دی . فخر په دا فقر کښې دی. دامیرالمؤ منین عثمان ابن عفان دعبدالرحمن چه اکابر دصحابه‌وو، ډیر مالونه خزانی دفینی وې ولی ددیوتعلق خاطر پری نه‌ؤ ، تلاش یی دوصول کیدو کاوه ، نفع یی مرادمقصود وه چه وچاوته رسیږی . داصحاب صفه هیڅ مال نه‌ؤ نه‌دمال‌په وصول متوجه وو ، زاهد ترین دخلق وو اما د عثمان تر مرتبه‌ددوی‌مرتبه نه رسیږی .
په هرڅه کښې نیت بایده دی.انما الاعمال بالنیات .

**مصرع**

درویش صفت باش کلاه تتری دار
په زکاة حلال مال واړه مزرعه‌دآخرت دی .

**شپاړلسم هنر د سودا ګری د تجارت**

داکسب سنت د پیغمبرانو ددین د بزرګانو دی . ډېر ښه هنردی. دوه سودا ښې نه‌دی نوری واړه‌ښې.یواحتکار بل‌دسړیوخرڅول. دشراب چه خمر بلل شی هغه هم عذاب الیم‌لری . حدیث صحیح دی انه قال

سبعة نفریحول وجو ههم عن‌القبلة‌فی‌القبر فاذهبوا وانبشوا قبور هـم فان‌لم تجد و هم هکذا ماقلت لکـم‌فهو باطل قیل منهم یارسول‌الله فقال شارب‌الخمر و بایع‌البشرو شاهـدالزور واکل الربواوالنایحه والمحتکر وتارك‌الجماعة . اوه طایفی یـا اوه‌سړی دی چه مخ به یی لـه قبـلې وګرزاوه شی ، په ګور کښې‌لاړشو،ددیو ګورونه وګورو ـ یو خمر خوار اوخمرفروش، بل فروشنده دسړیو،بل دروغ‌ګواهی دهنده ، بل سوایی خور ، بله ښځه نوحه ګره ، بـل‌جمع کننده دغلی ـ سودا روغه ده نفع یې ډیره ده اما په نیت دګرانی‌چه احتکار وی نعوذ بالله منها ـ هر

چه په اورنه سوځی په‌اوبه نه‌نمدیږی‌ساهه نه لری ، په حکمت کښې د هغی متاع تجارت ښه‌دی‌لکه اوسپنه،زر ، سیس مس امثال این . په داکار هم وقوف دار سړی دیانت دار تعین‌کړی بویه . د ملوك په سر کار خو زیات ، چه ددوی پکار کیږی ، هغه‌تجارت ښه دی . لکه آس ، فرش فروش لوازمات ، مصالـح د بـاورچیخا نی . همواره دې دا خـریـد فروخت کیږی . ملوکانو لره ښـه‌متاع ښه خیزونه لادروایش (۱) په تجارت کښې په‌وجه‌احسن سره‌پکارکیږی چه پکاروی په سرکار کښې به یی په کار شی ، باقیمانده بـه‌خرڅ شی . په داطریق دې همیشه داکار کیږی . خپل اعتباری خانه‌زادچه وقوف هوس ددې کار لری چه په داکار مقرر شی لابهتر بویه ، چـه‌ملوك دداکسب په طریق د مصلحت او په نیت د ثواب د فیض رسانـی،چه دده دماله فیض په یوه رنـګ

وچاوته رسیږی ، یاښه متاع اقمشه‌ورلره راځی ، همت دې داوی ـ والا نه سوداګر پیشه ، تجار طبیعت‌دې‌نه وی ، چه سوداګر تنګ دل وی ، زیست روز ګار یی پـه حساب پـه‌کتاب مصروف شی ، بـخل امساك ورځنی پیدا شی ـ دافکر نه بویـه‌بلکه بند دې په دا حساب کتاب نه وی . که نفع یې ډیره وی که لږه‌پروا دار دې پری نه وی . ددې‌کار سړی دی علیحده وی ، چه داحساب‌کتاب کا ، اما په و قوف دمتـاع دقماش دی خبردار او هوښیار وی‌په‌مضاربت هم سودا روغه ده .

---

(۱) معنی یې څرګنده نه شوه.

په هر شان چه وی تجارت خوبویه ، که پکښې زیان وی هم البته دا کسب بی نفع بی فایدې بی ثوابه‌نه دی . چه مال لری ددنیا زیست روزګار کثرت غواړی ، سوداګری‌به‌نه‌کا ، ناپوهی به یی وی .
درې توکه په درې توکه قایم‌دی بلکه افزونی دکار دی ــ ملک په سیاست ، علم په بحث ، مال په‌تجارت . والسلام .

## اولسم هنر د تحقیق نسب

دا هنر هم د قابلیت د استعدادسره شماره دی . هر چه نقص دفطرت لری په داکار کښې درمانده‌دی، عالی فطرت سړی هغه دی چه‌په هرڅه یی غرض وی د هره حالـه‌خبر داروی .

### مصرع

خوش باخبر از خودو زهردوجهان

امیرالمومنین ابوبکر صدیق په‌داکار کښې بی همتاؤ . دعربانو نسب په ده تحقیقیده . مروربه هم تر عدنان پوری شماره د خپل نسب بطنا فی البطن‌کوله ، په هورته به یی ژبه ونیوله ـ د پښتانه د نسب ډېر قوله ارویدلی‌لیدلی شوی دی . په تحقیق می ددې کار مبالغه ډېره وکړه تاریخونه ښه‌دنسب رسالې ، نسب نامی می په‌نظر کښیوتې . په یوه کتاب کښې‌پښتانه‌دیافث بن نوح په اولاد شمارلی‌وو ، په بل کښې قبطی چه د فرعون قوم‌دی ، کښلی وو . په بل کښې دمهتر یعقوب دیهوداپه ذریات منسوب کړی‌ؤچا د کر دانو سره حساب کړی وو. اما تحقیق چه بلا اختلاف وشو ، واړه‌پښتون د ابراهیم پیغمبر دورور د اولاد دی .
په دی‌کښې شبه نشته ، ترمانه‌به چا په تحقیق ددې کار سعی‌زیاته چاکړې نه وی .
له دې بابه به څه خوڅوګنجایش لری په دا مختصر کښې ووایم ـ پښتون ډېر دی ، تومنونه‌اولسونه دواړو ګنجایش نشته که حق تعالی نجات راکړ ، وداع ورکړه‌شی ، درنتبور ورغلم په کور ،

علیحده تاریخ به انشاشی چـه یـی‌تماشاشی . اوس هومره چه داخبره واضح شی ابتدا به یې نـه خپلـه‌نمسیه کړم چه افضل خـأن دی ـ افضل خان د اشرف خان ـ اشرف‌خان د خوشحال ، خوشحال دشهباز خان ، شهباز خـان د یحیی خان ـیحیی خان د ملك اکوړی ملك اکوړی دچنجو ـ چنجو د تومن ـ تومن‌دحسن ـ حسن د شیخ علی ـ شیخ علی د هوتی ـ هوتی د بټی ـ بټی‌د اټو اټو د تری ـ تری د تور مان ـ تورمان د لقمان ـ لقمان د برهان ـبرهان دری زوی : لقمان چه خټك یادیږی ، سلیمان چه افریدی دی ،اتمان چه اتمان خیل دی ، څدراڼ برهان سره وروڼه دی . افریـدی ،اتمان خیل خټك دا سره بر هـان

خیل دی . برهان وته بهرام براهیم‌هم وایی اما په اصل کښې برهان‌دی برهان څدراڼ دواړه سره په کودی‌ورځی ، په کرړانی ډیر دی ـ دلازاك ورك زی سره دیوه پـلاره دی پـه‌عبدالرحمن شیرزاد خضر خیل تمام خوګیانی ، دابل پلار شی . شیتك‌حلیم تمام کیوی دبله پلاره شی ، سوړانـی ، دوړ سره نـژدی دی .توری ځاځی داسره نژدی دی .

وزیر وردګ خیـل ، هونـی‌منګلی ، دنی دواړه سره کرړانی‌شی، دکودی شپږ زویه‌ؤ داواړه د هغوی‌اولاد دی کرړانی د نی دی لوی کړی، ور مړدی .

ګونـدی پـه پښتانه کښـې‌دسړ بنی‌دی . واړه پښتون‌دشر کبون دخرښبون اولاد دې . په معتبر‌تاریخ‌کښې می لیدل چه حضرت دا نیال پیغمبر لاشیر خوړؤ چه په سبـب‌دحادثی په صحرا کښې د مورد کنار جدا شو ، حق تعالی یوه مزری په‌ده‌باندې مهربانه کړه ، خپل غار لره ور وړ ، پی‌ ورکول ، په خپل‌پستان‌یی د هغه پیغمبر عالی ګهر پرورش کاوه ، تر هغه وخته چه د شیر پـه‌شیر لوی شو . یو ملوك په ښکار

وتلی ؤ ، د مزری دغار په خوله‌کښې‌دی ولیده شو ، حق حیران ورته‌پاته شو ، وایی خست خپل کور مکان‌وته یی راوړ په تربیت یې مشغول شو پس له مدت موعود پـه نبوت‌سرفراز شو په سلطنت په بادشاهی ممتاز شو ، پخپل مهر کښې دمزری‌صورت نقش کړ ، چه بخت نـصر

ملعون دربع مسکون ملك تسخیر کړ، بیت‌المقدس یې مسخر کړ ، حضرت دانیال د هغه بدبخت شقی په لاس گرفتار شو ، په قید یې کړ د قوم سره یې له هغه ملك اخراج کړ ، په کرمان په سیستان یې واچاوه ، یوه پاره عالم دده په عربستان په نواحی د مکه پاته شو ، خالد بن ولید له هغه فریق دی . القصه چه محمدعربی مبعوث شو تر هغه پوری دا ملك ددیو مستقر ؤ . د آتش پرستانو آزارایذا په ځان تېروه .

په عهد د بنی امیه چه د اسلام لښکر په خراسان راغی ، دا قوم په وسیله دبنی خالد واړه داسلام دلښکرسردار لره ورغلل ، دین د اسلام قبول کړ ـ داسلام د لښکر پیش روشول . تر دیار سند یې دا ملك فتح کړ ـ ددیو نسب منسوب په دانیال پیغمبر دی اسلام یې د بنـی امـیه دخلافت په عهد وشو . حضرت دانیال د ملك طالوت دنسل دی مك طالوت دابراهیم پیغمبر دورور دذریات دی .په پښتانه کښې شجاعـت دلاوری

دهغی مزری دپیو تاثیر دی . خطاب د ملك د ملك طالوت په نسبت دی. عربان چه په خراسان راغلل ددیـونسب ورته معلومؤ . چـه مسلمان شول ورته یی ووی چه تاسو د ملك طالوت اولاد یاستی ، په اسلام کښې ستاسی خطاب هم ملك دی . دپېتان خطاب آل سبکتگین چـه د غـزنـی بادشاهان وو هـغو ورکـړی دی .د سو منات پـه غزا چـه گجرات لره سلـطان محمود راغلـی ـ پښتون ډیر ښود وکړ . سلطان ورته ووې چه داد ماد لښکر پټان دی .

پټان یولرگی دی چه جهاز په هغه مرتب کیږی . د افغان **خـطاب** د مهتر سلیمان په وخت ارخیادملك طالوت زوی موندلی ؤ . اف په عبرانی ژبه گیروته وایی ، غان دیوه دیونام ؤیعنی دیوگیر ـ غان دیوار خیانیولیؤ ازبك هسی وایی چه موږ دبرخیا .اولاد یوپښتون دار خیا . والله اعلم بالصواب .

### اته لسم هنر د علم موسیقی

یعنی سرودسار نغمه. داعلم عمیق علم دی لکه د شعر هسی بحور عروض

لری ، شپږیې بحره دی ، د هر بحرشپږ شپږنغمیدی. اختراعدافلاطون دی ، نظم هم اختراع د افلاطون دیپه مقابل یې یو دبله اختراع کړی دی . اما هر چند نوی علم دی بیاترجیح پرې د نظم دی . امیر خسرو دهلوی په دواړه فن کښې استاد تیرشوی دی . له دې بابه څو بیته قطعه لری ماحصل او ښه بیت یې داؤ چهترجیح یې د نظم ورکړی دی .

## بیت

نظم را همچون عروس دانو نغمهزیورش

نیســتعیبی گرعروس خوب بی زیور بود

نظم او نغمه سره لازم ملزومدی . سرود د خولی لحن واوازوته وایی ، چه په خوله له حنجری آوازوخوت شی یا سرنا ، نایی ، شپیلۍ موسیقار دا سرود دی . لکه رباب،سرینده ، چار تاره چه په لاس په ګوتو وهل شی تر ډوله ، تردف ،پوری داواړه آلت د سرود دی ، نغمه پیره ورته وایه شی ـ چه دا کار کاهغه مغنی باله شی ـ چه په داکار کښې طرب مونده شی نوازنده یـېمطرب وایه شی . خیلی سقیمفطرت به وی چه دا حظ پکښې نه وی ـ پهدا آواز اوښان مست شی ، د صحرا هوسۍ پرې بیهوش شی . هغه بهځرنګه سړی وی چه په سرود بهیې حالت حاصل نه شی . هغه چه پرېانکار کا هومره فکر خودی وکا چه د داود پیغمبر صوت معجزه ؤ که نهمرغونه به دده په آواز له آسمانـه نه راپریوتل کهنهـکهسرود بدوی،معجزه بهدداؤدپیغمبر نهوه. شكنشته

چه په زړه کښې څه حال چه دچاویهم هغه را ښوروی لکه پنځ چه په کاڼی وهی اورترې ولـووی ـ پسملوکان چه د توری ، دور کړو ، دبخښلو دعدل د داد فطرت لری ، دیولره خو بویه چه تمام علم دېزده کا ، لکه شعر چه فهمیدن یې لازمدی هسی دا هنر دی ـ پخپله دې نه کا مګر دډیر علامی په سببوچاتهدافن ښیل و نغمه نوازوته فرمایل، یا په خپل حرم کښې دننه ازرویطرب چری صادر شول او که نه خو

علم او اوریدل کافی ـ د عالمانـودصوفیانو ترمیان ددې علم مباحثـه مجادله ډېره ده .

دا علم چه مسخره او رسواکړهم صوفیانو رسواکړ ـ صوفیان هم هغه چه مدعی وی ، حال پکښې نه‌وی، بیهوده واړه ناري او ترپی وهـی ، وجد وحال سماع یې نوم کا . دهغوپه تعجب عالمانو فقیهانو د حرمت روایتونه چه حرام دی ساز ایستل،چه په دین کښې رخنه کـه‌یـږی . صوفیان دا باحت روایتونـه پـرېږاوړی چه مباح دی ، دواړه لوریـه ښکر په ښکر دی .

## بیت

هیچ کس سر دهـانت بحقیقت‌نشناخت
هر کس‌اینجا بهوای سخـنـی مـی گوید

داصوفیان چه دا باحت روایتونه وکاږی ، وجد و حال سماع پرې کاندی دا مدعی دی :

## مثنوی

رقص آن نبود کـه هر زمان بـرخیزی
پی دردچـو گرد از میـان بـر خیـزی
رقص آن باشد کـز دو جـهان‌برخیزی
دل‌پاره‌کـنی و ز سر جان بـر خیـزی

عالمان بر حق دی ، په داهسی‌صوفیا نو حرام دی .

## غـزل

| | |
|---|---|
| وای برین مـدعیان سماع | وجدکنند ازسرنفس اختراع |
| چشم کشاده بسوی آسمان | بسته دل خودبضیاعو متاع |
| وقت‌تجمل‌همه همچون جنید | وقت تحمل‌همه‌همچون‌سباع |
| درد دل‌خویش بگویم تـرا | از غم این قوم بکن استماع |
| هرهمه‌کردند به‌باطل رجوع | هرهمه کردند زتقوی وداع |

هرکه دروپیروی‌شرع‌نیست وسوسهٔ دیو بود پی نزاع
نیست‌درین‌قوم‌کسی‌اهل‌وجد نیست درین‌دایره‌مردسماع

## غـزل

هرزمان صدفتنه پیدا میکنی هی‌هی مکن
خـلق راهر سوی رسوا میکنی هی‌هی‌مکن
رقص‌درویشان‌زوجدو حال‌باشدآن‌چو نیست
رقص‌عشق قرص و حلوا میکنی هی هی‌مکن
کار درویشان نازك ذکر اندرخلوةاســـت
آنچو نیست این شوروغوغامیکنی‌هی‌هی‌مکن
خرقه پوشیدن ز تو شور مــی‌آید مرا
طمع‌تشریف که‌هاها میکنی هی هی مکن

من کان نفسه میتا و روحــه‌صمیاً فسماعــه مباح . یعنی چه نفس يې مړوی ، روح يې ژوندی ، سماع‌په هغو مباح ده .

## ابیات

ســرود هــورتــه دی روا چه نه غاووی نــه غــو غا
سامعان يــې صاحبدل وی نــه يــې نفس نه یی هوا

داخبرې د حرمت ، د اباحت‌دعالمانو د صوفیانو دی . دملوکانو خو اعتقاد بویه .

په دا کار کښې هرچه دعالمانواتفاق دی اعتقاد دی ، په هغه درست وی ، سرود په خلوت کښې کا ، چه‌قاضی ، مفتی ، محتسب هورته‌حاضر نه وی چه ادب د شرع ترك نه شی.

په ازدحام په انبوهه کښې دې‌هرگز نه وی مگر دواده ، د جنگ قاضی مفتی لره بویه هم که ډیر داناوی په کار کښې مبالغه نه کا . چه په نص قاطع د سرود حرمت ثابت‌شوی نه دی . مجادله ځکه ترمیان کیږی . ډیر درویشان ، کاملان ،واصلان په دا کار کښې مستغرق‌ؤ. لادملوکانو داکار مصلحت دا دی چه‌وی دې ـ اما محتسب لره بویه چه دا احتساب له لاسه نه اچــوی ــملوکان دې مستعد ورسره په اعانت

ولاړوی ، خصوصاً په مجلس دشراب چه دا کار علانیه کیږی هر مسلمان لره منع کول واجب دی ، چه مددګاردمحتسب وی .

تولاتبرا افضل عمل دی ،هرچه امر معروف ترك کا غضب په هغه ګروه نازل شی . حدیث واردشوی دی الاعمال افضل و احبا الی الله تعالی قال الایمان بالله ثم ماذاقال صلةالرحم قال ثم ماذا قال الامر بالمعروف والنهی عن المنکر قال فای الاعمال ابغض الله قال الاشراك بالله قال ثم ماذا قطعةالرحم قال ثم ما ذاترك الامر بالمعروف والنهی عن المنکر.

## نونسم هنر د نرد د شطرنج دی

شطرنج اختراع د بوزر جمهرحکیم دقباد دنوشیروان د پلار وزیر دی . دشافعی په مذهب مباح دی .دموږ د امام په مذهب چه امام اعظم دی حرام یې فرمایلی .

په شرط هرګزنه بویه ، میره عورت یې که سره کا روغ یې شماری والا نه شرط یې مطلق حرام دی .قمار په نص قاطع حرام دی . په زده کول کښې فهم زیاتیږی . په کول کښې یې څو توکه مجرب دی ، یوکه سړی هرڅو غمناك وی چه د حریف سره په شطرنج کښې د منصو بوپه فکر کښې یې هسی مستغرق ولاړشی چه خبر هم نه وی چه زه چرته ناست یم ، لکه اوده یا مراقبه هسی حال لری چه بازی د حریف نه ګټله شی ، مهره وهله شی ، ذوق بشاشت یې حاصلیږی . بل داچه اختلاط سره بنه د مجلس کیږی ، که په زړه کښې سره بد شی ، وبله غلمیان وی چه نرد شطرنج ترمیان کا ، کلفت یې سره وغوړیږی ، سره مین یاران شی بل دا چه د جنګ دقیقی منصوبی په شطرنج کښې زده کیږی .

غرض چه داهنر د اختلاط دی ،ملوك لره ډیر په کار دی ، دازده کړی بویه ، چه په حرام کښې هم تفاوت شته اګرچه شطرنج حرام دی، چه د امام شافعی په مذهب کښې رواشو ، وشو ، چه په څلور واړه مذهبه حرام وی هغه حرام غلیظ تروی ، بیا هم تفاوت شته . دیتیم مال په څلور واړه مذهبه حرام دی اماځینی یتیمان دولتمندوی ، ځینی آه په ځګر نه لری چه هغه آه په ځګرنه لری ، د هغه مال سخت تر ترهغه

بله دی چه دولت لری ځکه تفاوت‌دزنا وشو ، محسنه چه میره لری‌که زناوکا ، حکم درجم سنگساری دی‌دغیری محسنی چه میره نه لری‌درې پرې حکم دی . چه شبه دنکاح‌پریوزی یا داجرت لکه فاحشې ددری حد تعذ یرهم ورځنی واخست‌شی . لکه خمر چه په نص قا طع حرام دی غلیظتر ترنورومسکرودی،اگرچه واړه مسکرات په اتفاق حرام دی اماچه پرې نص گویا دی دهغوحرمت لاصریح دی . بیا په واړو مسکرو کښې تفاوت پوست په واړوکښې پایان تردی بلکه یووخت‌مباح هم شی ، دانورنه مباح کیږی . په‌معاملات کښې ډیری مسئلی دی چه زبون احاد رواېتونه پکښې راځی ،داامامانو اختلاف ډېر شته داواړه په اجتهاد مومی . د مجتهدانو دااختلاف‌رحمت وی .

احاد په نص قاطع کښې چه‌قرآن بانديې ناطق وی ، تواترحدیث پرراغلی وی ، به هغه کښې هیځ‌اجتهاد نشته مگر چه په کسره ، په فتح ، په ضمه یې لولی تفاوت‌پکښې‌کښېباسی یا عطف پرې راوړی لکه دپښنوولل ، مسح ـ چه روافض‌دپښو مسح په هغه دست آویز کا، په قرآن کښې دقیامت ذکر واردشوی دی . چه قیامت آمدنی دی ، پس له مرگه ژوندون حق دی . داځای فکر زغلول د امام د مجتهد نشته .

دا ځای خو قبلول دی . هرچه‌مخبرصادق ووی امناوصدقنامنل‌بویه او که نه ، کفر دی . هسی واړه‌قرآن منل دی چه کلام دخدای برحق دی ، هرچه په قرآن کښې دی هغه‌شرع ده ، عقل‌هم دغه دی چه دشرع د ځښتن رو زی شوی دی . دا نورواړه زیرکی ، هوښیاری دی چه دفطرت په سبب د چاځخه شته . دازیرکی دزندگانی دپاره دی . کافران مومنان بلکه وحوش ، طیور جمع‌جانور په داکښې شریك دی ځینی هلك مرغی‌هسی‌جالې په‌کرشنوسره اودلې‌سازی کا ، چه سړی پوری حیران شی . مزری لیوگان هسی‌خو ووهی چه سړی ورنه رسیږی .

پشو مرك وته هسی خو جوړکا چه فکر نه ورسیږی ـ د گبینه مچی هسی سند لری چه میر ،سردار ، دروان ، وکیل ، وزیر لری داواړه زیرکی د عقل خو شرع دی.

## شلم هنر د نقاشی د تصویر دی

دا هم عجیب غریب دی . دیاو قلم دیوه بساط یاران دی . یا خوش نویس دی یا ښه نقاشان دی.مانی او بهزاد په دافن کښې اوستاد تیر شوی دی ، تر اوسه یادیږی .

مانی هسی مهارت ددې هنرحاصل کړیؤ ، چه بی جدوله کښی به یې جدول را ښکول .

همدا هنر چه تر کمال یې رسولی ؤ ، د عوایی . دپیغمبری وکړه . معجزه یې دا د جدول راښکول تصور کړل، ډیرخلق پرې وګروهیده، دهغی زمانی بادشاه دستګیر کړ ، پهقتل یې ورساوه .

بهزاد به چه صورت تصویر کړ تفاوت به یې په څهره کښې نه ؤ ، بعینه به هغه شخص ګانه شو .

دا شبیه منع دی اما نقش د ګل ، دګل دبوټی وغیره روغ دی که په کتاب باندی نقاشی تذهیب کیږی روغ دی . شبیه هم دطبیعت د شګفتګی دپاره پکښې کیږی .بهزاد حکیم اوفاضلؤ، شبیه به یې په کتاب کښې وکیښ یو شبیهبه دده دلاسه ملوکانو په آرزو نه مونده .

په تاریخ کښې می لیدلی چهپه دانیال پیغمبر باندې تر آدمه چه ابوالبشر دی تر خیرالبشره د اکثرپیغمبرانو صورتونه په حریر باندی تصویر کړی جبرئیل درب جلیل نهراوړی وو . د مونږ د پیغمبر شبیه په حریر سیاه باندی تصویر ؤ ، پههغه وخت چه سرور عالم مبعوثشو داصورتونه واړه قیصر روم څخه پهصندوق کښې وو ، د سرور عالم ایلچی چه قیصر لره ورغلیؤ هغهصو رتونه یې ور ښکاره کړل درسالتپناه شبیه هغه اصحاب چهایلچی شوی ورغلیؤ ، ویې پیژانده. قیصر خفیه پیغمبر و مانه اما ظاهریدقوم د ډاره اسلام آشکارانه کړ ، د حضرت ایلچی یې په ښه طریقرخصت کړ دا هم اوریدلی چه دبی.بی عایشه رضیالله عنها شبیه هم جبرئیل راوړیؤ ــ تمثال چه پهکانی، په لرګی په سیم وزر باندې وی ،دهغه رنګ دکتونه دی په جامه په

فرش په فروش باندی هم بد ـ اماچه په موئی قلم په کاغذ بـانـدې سازیږی، اوستادان ددېفن کارستان‌کا لکه دښی جنی په کاته فرحـت نزهت مونده شی ، هسی په ښـه‌صورت په ښه شبیه پوری حیران لکه د شکرو په یادولو خوله او به‌اوبه شی ، هسی د ښه شبیه په‌لیدل زړه تاوتاو شی . هنر دی که میړشی ښه کار دی . زده کول یې لکه د خط مشق هسی لری . مشق یـې‌په موئی قلم کیږی . په دا قلم چه د خط دی هم نقاشی کیږی اما لازمه‌یی موئی قلم دی . میرزا خلیل د امیر تیمورګورګان لمسی‌هسی مصورؤچه‌لکه نورو به په موئی قلم کار کاوه ده به د خط په قلم هغه کار کاوه . والسلام

## باب دویم ، د خصلتونو مشحون‌په شل خصلت چه لازم دسیاست

ظاهر دی چه ولایت ، سیاست‌ظاهر موقوف په دا خصایل دی . که دا په کښې نه وی کار یې انتظام‌نه نیسی ، خطرو اختلال ترې تولد شی . نقصان د یو خصلت په ترک‌هم واقع کیږی .

دسیاست ظاهری مراتب دی‌په دوه تنه کښې ، هم یو سر داروی چه امیر باله شی په کاله کښې ، د کالـه ښښتن امیر دی . کلکم‌راع وکلکم‌مسئول عن‌رعیته. په کلی‌کښې‌هم امیر وی ، په اولس کښې هم ، په‌اقلیم‌کښې‌هم‌ـ په داحساب‌امیران‌ډیر دی اما امیر هغه دی چه دولس زره ځوانان دده په حکم کښې وی ،حکم پرې نافذوی ، خوف ورجاورځنی کاندی ، موافق په شرع وی .

اطیعوالله و اطیعوالـرسول واولی‌الامر منکم ، یعنی اطاعت کانئ دخدای د رسول ، د خپل امیر چـه‌ستاسی وی ، ځینی مفسرانو په ځای دامیرانو عالمان شمارلی ، چه پیروی‌کانئ د عالمانو .

اوس خو قرار په دا موندلی‌شوی‌دی چه‌بادشاه دزمانی اولوالامر باله شی ، لکه سلطـان السلاطیـن‌شهنشاه پخپل ملك ـ چه ترسلطان السلاطین کوزوی ، هغه سلطا نان‌بلل شی ، چه دسلطان السلاطین په حکم په امر کار کا ، چرته حاکم‌شی،هغه نایب نواب باله شی . داواړه امیران دی . شاهنشاه په مثال لکه‌لوی دریاب ، دا لکه د دریاب ولـې.

لکه د دریاب داوبو مزه هسی دولودجویونو ، دشاهنشاه د حکم وتلیوی.
دخپل ملك ملك‌سلطان‌وی، هغه لکه جداررودونه، پخپل مقدار څوك لوی
څوك هلك ـ د دریاب د اوبو ، دولو،درودونو دواړه اوبونه فیض مونـده
شی ، مګر هغه اوبه چه خساوی ،یاښوره تروی ګنده وی ، له هغواوبو
فیض مونده نه شی .

هرچه ملوکان‌آراسته په‌هنرونوپه ښه خصلتونو وی هغه لکه ښی
اوبه که بر عکس وی هغه هسی‌اوبه‌ناپاکې وی ـ چه د شرع په حکم
پاکې وی ، نه یی رنګك بدل وی ،نه یې خوند نه یی بوی ـ که په دا
کښې یی خلل واقع شی که درست‌دریاب وی له کاره ووت اول امیر لره
بویه چه ځان په شرع آراسته کا ،بیا دولایت‌ظاهری ، دسیاست‌هنرونه
خویونه ، خصلتونه زده کا چه پاك‌دریاب شی قابل د فیض. هنرونه‌خو
مرقوم شول اوس به خصلتونه‌کښم.

## اول خصلت د مشورت دی

یعنی مصلحت د ملوکانو پـه‌دوه رنګه دی یو قایم بالذات ، بل
قایم بالغیر ، قایم بالذات هغه چـه‌پخپل ځان قابل لایـق وی ، واړه
هنرونه خصلتونه پکښې وی ، هغه‌لره هم مشورت لازم دی ، چه بـې
د خیر خواهانو د مشورت دې کار نه‌کوی . محمد رسوالله چه عقل کلؤ
هم د اصحاب سره به یې مشورت‌کاوه . فرمایل یې چه د ما څـلور
وزیران دی دوه په مځکه دوه پـه‌آسمان ، چه د مځکی پـه مـخ دی
ابوبکر ( رض ) عمر ( رض ) چه په آسمان‌دی‌جبرئیل، میکائیل‌هرګاه‌چه
وحی‌پرې‌راتله، حال‌یی‌داؤچه مشورت‌به یې کاوه ـ د یو نورو لره خو په
طریق اولی مشورت بویه خپل واهی‌فکر دې ځان څخه لری ، هرچه نیك
خواه وی پوښتی دې ـ شاید چه دده‌تررایه فکر ، بهتر رأی دبل وی .

**قطعه**

ګه‌بود کز حـکیم روشن رای بر نیاید درست تـد بـیری
ګاه باشد که کودکـی نا دان به غلط بر هدف زنـد تـیری

بل قايم بالغير، هغه هغه سړیدیچه هلك وی ، لا دقابليت علم یـې کړی نه وی یا ابله وی یا عور تینه‌وی‌چه ناقص عقله وی ، دسیاست په کار نصب شی . په یوه سبب که‌دا هسی سړی وزیر صاحب تدبیر لری هم به یې کار پیش ځی ، ځکه‌ملوکانو لره وزیــران لازم شــول ، خلل به یې د ملك نه وی او که داهم‌نه وی فساد د ملك ، انتقال د دولت معین ولید شو . هر آئینه دملوکانووزیران دانایان بویه چه دوزارت‌کار د داناوی ـ غرض چه د مشورت‌فایده‌ډیره ده .

که په مصلحت جوړ شوی کارویران شی هم‌ملامت غرامت په چاوایه نه شی .

## دویم خصلت دعــــزم

**یعنی قصد دچار ملوك لره بویه چه تر خوله یی وایستل چه‌داکــار به** کړم یاهرچه دده ترخوله وواته ، نور تر و بو یه چه هغه چاردې محکم په لاس ونیسی، که دورانی وی، که دودانی وی که پکښی مری، که ژوی هغه کار دې کا ، خپله خبره دې نه‌بدلوی. دملوکانو لویی خو په خبره ده چه خبره سپکه هلکه شوه، هســی دی‌سپك‌هلك‌شو. کلام‌الملوك‌ملوك‌الکلام. دملوکانو خبرې هم ملوکې دی . په داسبب مصلحت مشورت په هر کــار کښی بویه چه مبادا چه هسی خبرې ترخوله وباسی ، چه‌دښیلو نه وی‌یایې پکښی دملك دسرزیان وی، بیابه مشکل شی خوداوله دې پوخ فکرو کا بیادې تر خوله وباسی . دملوکانو په سرکښی ددې باب مبالغه ډیرده، پکښی ډیرشان مذکورات، تمثیلات راوړی ـ یوه ملوك خاورې خوړلی، طبیبانو یی علاج کاوه له خاورو منع نه شو، یو حکیم لاف وکړ چه زه به‌یی علاج‌وکړم وریی وباله، ورته یی ووې چه‌خاورې مه خوره !

ملوك ویل چه زړه می ورځنی‌نه دریږی ـ حکیم ورته ووې چه تر خوله وباسه نه به یی خورم . ده وویل چه نه به‌یی خورم ـ حکیم ورته وویل چه‌ته ملوك‌یی دملوکانو دعزم دې اوریدلی دی، چه عزیمت‌وکا، ترخوله وباسی نور هغه چاره ورپسی ټینګه کا ـ ویې ویل هو ـ حکیم‌ورته ویل چه‌سکه اوس تاتر خوله وویستل چه خاوری به‌نه خورم، که داخبره بــله کړې سکه عزم دې برباد شو . هغه ملږك نورې خاورې ونه خوړې. داخبره نقل دمامون‌خلیفه نه نقل‌کیږی یوبل‌ملوك‌دهندؤوچاته‌یی عطاورکوله،وې

شش هزار بدهید ـ په وخت ددستخط شصت هـزار، دستخط په‌سهوم
دده پـرې وشو ـ عـرض وشو چـه دسیاهی په فـرد شش هـزاردی
دستخط پرې دشصت هزار وشو ،هرچه حکم وی ـ فرمایل بخت دهغه
اوس به زه خود خبرې نه‌نه غړبرم، شصت هزارورکانيء !

دملو کانو حال دادی سلطان محمود په یوه ملك باندې‌مهم‌کاوه، ترخوله
یی ووت چه زه به دخوارزم مهم‌کوم حسن میمندی نورو خیر خواهانوورته
عرض وکا چه دامهم سلطان ولی‌هسی‌بی تحاشی تر خوله ویوست ، ویی
فرمایل چه زه هم‌اوس پښیمان یم اما چه ترخوله می‌ووت‌که می سر ځی‌هم
به‌یی‌پرې نږدم ـ هغه مهم یی‌په دشواری ترسره کړ . دکشمیرملوکؤ، په
تماشی یی ترخوله ووانه چه په زهروسرړی پس ومری زه به‌یی‌هم وخورم
چه فکر یی وکړویل یی چه ماخو په‌تماشو مسخر وویل اماچه ترخـوله
می ووانه اوس‌به یی خورم، زهریی راوغوښتل، واړه خلیخانه مریان‌یی‌په
ژړا شول، ده خپله خبره نوره نکړه‌زهرېې وخوړل،پرې‌ومړ که‌چاورته‌وې
چه باری لږ وخوره ، وې داهمه‌حیله‌ده مردان حیلی نه‌کا ـ غرض‌چه‌دعزم
کار دملوکانو هسی گران دی، هرعزیمت‌چه وشی‌فهمیده بویه . والسلام.

## دریم خصلت د خامو شی دی .

دملوکانو وخولووته خلق په کاته وې چه څه ترخوله ووزې، که داناوې
که کاڼا واړولره خاموشی افضل ده. ترخاموشی دپاسه بل بهتر خصلت
نشته، دویل آفت ډیردې بلکه افات‌لرې، که دراز ښکاریدل دې‌په‌ویل کښی
که‌بی ځایه عزیمت دې په ویل کښی دی، که دچااز اریدل دی په ویل کښی
دی، که طلاق اوعتاق دی په ویل کښی ، که دملایکو تصدیع ده‌په ویل کښی
ده، که‌نعوذبالله دایمان وتل دی پـه ویل کښی دی، خـویی شماره‌شی
زرگونه یلا په ویل کښې دی بلکه دسروهل په ویل کښې دی .

**مصراع :**

زبان سرخ سر سبز میدهد برباد

من سکت نجایعنی‌چه‌سکوت شی‌نجات‌حاصل‌شی. په‌یوه‌زمانه یوبزرگ‌ؤ
همیشه به یی په خوله کښی دچرگې‌ها ساتلې، ورله چاووې چـه داڅه؟
ویل یی دخولې برغولی می کړې‌دې‌چه‌ترخوله می‌څه‌ونه وزی ـ هغه ورته

ووي چه که دژبی زیان ډیردي سودیی هم شته ، ځواب‌یی ورکړچه‌خوزیان دي نه وي، توبــه ددي له سوده ــ درازدکتمان خصلت بیل دي، ماپــه خاموشۍ کښی راوړ ځکه چه علاج‌یی په خاموشۍ شی . ملوك لره‌بویه‌چه دزړه راز دي له محرمانو هم پټ لري‌مګر چه دهغه پەرأیه‌پەدانش اعتماد کلی لري .

بيت

اګر جز تو داند که راي توچیست          بران راي دانش بیاید ګریست

ارسطا طالیس دسلطان سکندر وزیرؤ ، په یوه مکتب سره ناست وو،دهلك والی یاران وو، هم‌رازیی دخپلو ښکروچه په‌سرکښی‌یی ښکروو، ودەوته ویلی نه ؤ، دملك تدبیربه یی چه ورسره کاوه هم‌خپل رازبه‌یی ورته پخپله خوله ونه وي، چه دمادانیت داعزم دي. ارسطو به په قیاس معلوم کړکه یوه لوری ته به مهمؤ خبري به‌یي دبل لوري کولې .

## څلورم خصلت د راستی

راستی هر چا لره بویه ، زیات خوملوکانو لره ــعالم ددیودخولوځري‌دي هــر چــه د دیو تــر خوله وو زي ،هغــه خبري پــه عالــم ګر زي . په مطایبه په مسخرو کښي دروغ ووایی‌هــم عالم ورځنی بــی اعتبار شــی چه‌لکه دایی ووي‌هسی به‌نورووایی سکه‌ملوك‌لره‌بویه‌چه‌په‌هره خبره‌دي‌پاس انفاس لری، زیات‌خوپه قول،په عهد،په بیان چه‌که‌یی‌سردرومی هم بی‌قولی خودي نــه‌کا ــ که محــکم په راستی ولاړوي هیڅ‌آفت به‌ورنــه رسیږي همیشه به سرخ روی، منصور مظفروي .

**مصراع :**

راستی از تو ظفر از کردګــار

**بيت :**

راستی موجب رضاي خداست          کس‌ندیدم که‌ګم‌شده ازره‌راست

په قران کښی حق تعالی صدیقان، راستان ستایلی دي . وعده خلافی هم هر ګز نه بویه ــ الکریم اذاوعدوفا ــ وعده خوکړي نه بویه او کــه نــه وفا دي شی .

## پنځم خصلت د شرم دحیا دی

چه شرم حیا نه لری دین دنیانه لري ــ الحیاء جلد الایمان . حیاپوست دایمان دي . چه پوست نشته خو کنه درست ځان نشته . که شجاعت دي

که سخاوت، که‌عفت عصمت، امانت،دیانت ، مروت ، صیانت ، فتوت محافظت داواړه تعلق په شرم‌په‌حیا لری. که‌شرم‌حیاشته‌داواړه‌شته ـ که‌نه یو په ذاکښی په ځای نه‌وی، ځان په هرچا ګران دی . چه‌شرم نه لری وتیښتی، دشرم ځښتن ودریږي ځان‌ووژنی . مال ترځان‌ګران‌دی چه پـه ډیر ضرور ګاټه‌شی ، دشرم‌دپاره‌وښنده شی ـ د ښی محبوبې ښه‌نندار ه ده، دشرم دپاره ورته کاته نه شی ـ زلیخا په وخت دخلوت چه یوسف علیه السلام یی په زورپه زاری راضی کړ، خپل‌بت چه دزرویې سازکړې‌ؤ رایی واخست، ترپردې‌یی‌لاندې کړ ـ یوسف‌ورته ووې‌چه داڅه‌دې‌پټ‌کړ؟ ورته یی ووې چه‌دامی خدای دې ورځنی شر میږم، پټ‌می‌کړ چه‌داکارمی‌نه وینی یوسف ورته ووې چه‌ته له دې‌هسی خدایه شر میږې زه به ولی له خپله خدایه چه دانابینادی نه‌شرمیږم . ډار شرم سره تړلی دی‌چه لـه خدایه شرم لری ، له‌خدایه ډارلری.چه یی شرم نه وی دهغه ډارنه وی شرم په ډیروجه دی ـ شرم له خدایه ، شرم له فرښتو، شرم له‌سړیه . له‌خدایه شرم دادی چه‌خدایتعالی هسی بینایی لری چه په تحت الثری که په توزه شپه تور میږی په توره تیږه باندې درومی، دې‌یې وینی ، له‌نظریی غایب نه وی ـ هر خوك چه څه کاواړه حق تعالی وته ښکاره ـ که‌سړی ناروا کا ـ دیوې عورتینی سره کا، پټ ځاې غواړی، که په هغه پټ ځاې باندې بو هلك ورباندې ورشی ، هم به له ډیره شرمه ، له ډیره ډاره سره ویزار شی . حیف نه دی چه دخدای شرم په ده باندې هومره هم نه وی لکه دهلك ـ حاضر ناظربه‌یی‌نه‌ګڼی،دی بـه په معاصی عـاصی کیږی بل شرم دفرښتو هرفعل عمل چه دسړی دوجودصادرکیږې‌فرښتی‌په‌اوږو ناستی دی، کښی‌یی، تر عرش پورې دانورې فرښتی ننداز چی دسړی دافعال ، داعمال داقوال دی . داځای ډیرشرم بایده‌دی چه شیطانی فعل مخالـف دشرع دسړی نـه صادرنه‌شی ، څو چـه شیطان خـوښیږی په هغه ز هیر یږی .

**بیت**

فغان زین بدیها که در نفس ماست — که ترسم شودظن‌ابلیس‌راست

دفرښتو نه شرم په هرڅـه کښې شته، ولـی لعنت ښوځایه پرې وایی
یو خو چه په ناست په نماست ، ترنامه دکښیه، تر زنګانه دپـاسه داد
پټولو ځای دمرد دعورتینی برمنډشی ـ که پهغسل کښې ویهم نروښځی لره
بویه چه داقاعده په ځای لری . بل دې غسل هم په وخت کا چه نامحرم پرې
واقف نهشی ـ بل دی پهصحبت خانه کښې هم ځان ډیر نه برمنډ وی .
نور هم ډیر دی ، په داکښې خوګنجایش داؤ ـ دسلطان غزنوی غسل وایی
چالیدنی نه ؤ . پههند کښې سلطان محمدخلځی هرګزخوك په دهپوهیدلی
نه وو ، چه دی دخپل کاله سره دخول ، صحبت په کوم وختکابلکه محرم
خدمتګارې همدده په داکارنه خبریدې. عجب ښه بادشاهؤ ، دشرم قاعده
کمه ورځنی فوته وه .

**مصراع**

هر کرا شرم نیست ایمان نیست

دسړیو شرم ډیردی چه دبصیرت سترګې دچارنهیشـی، وبهپو هیږی اما
څه خوکښدل بویه . مورپلارته په خدمت په تواضع نه ودریدل ، ددیو پند
نصیحت نهاخستل، ادبنهپهځایول،چه ودیو ته ښوكآزار ورکوی ، هغه
شرنه دفع کول ، په هـرکار کښېددیو حکم نهپه ځایول،که د یـو څوك
ووژنی، انتقام نه اخستل، دابی شرمی ده ـ بلکه روایت دی چهدپلارانتقام
وانه خلی هغه زوی حرامزاده ولد الزنادی . همسایه ازارول، دیارسرهیاری
ترسره نهرسول، دملهسره ملګری نهکول ، د استاد حق نه په ځایولصلهٔ

رحم نه نمنځل، ددیونهددنیامالساتل،دیو وږی بر منډلیدل ، رحم پـرې
نهکول ، ننګ پری نهخوړل ، دا همبی شرمی سره شماره دیـ دعورتی
عبدالزوجه یعنی بندهدعورتی،چهدا پرېزورورہ وی، درستددی پهخولهوی
یاددې سازی نا سازی تحمل کوی ،پـه کو ښو ګر ځی ،په زیار تو نـو
پخپل حکم ګرزې یاددیآوازترحویلیلوړ ښوكاروی ،یایی خندا اروی، بلکه
دپایلودځرېترآوازپوریچه حدیثد یاناللهیبغضصوتالخلخالکمایبغض
الغنأ اویعاقبصاحبه کمایعاقبهالامرولاتلبس خلخالالا ملعونـة عذاب یی
هومره دی . اما دښځی میړه چه په داراضی، هم عذاب، همبیشرمی، هم
دیوسی ـ هرچه په دا شرمونو محکم وی هغه بهپه هرشرم پو هیږی ـ کـه

واړه کښېم کتاب اوږ دیږی، اما یوه طمع اوله چاغوښتل، سوال داهم لویه نخښه د بی شرمۍ ، د بی حیایی‌ده- چه په پـلار په نیکه بی شرم وی‌په هغه‌کښې‌هم داکاروی-که په‌پلارپه‌نیکه کښې‌یې دارذیلت نه‌ؤ ، په ده‌کښې پیدا شی لاشك چه له بله ، پلاره به‌پیداوی .

پسر کـو نـدارد نشان پـدر تو بیگانه‌خوانش‌مخوانش‌ازپدر

خواست سوال په ډیر رنگه‌دی‌دپلار ، دزوی ، دعورتی ، د میړه ، د نوکـر ، د صاحـب ، داستـاد ،دشاگرد ، د پیر ، د مرید ، چه حق وبله ته لازم لری ، دا په خواست‌شمارلی نه دی ، دا موقوف په‌همت دی ، که زوی صاحب همت وی دپلارپه خواست هم زهیریږی .

**بیت**

آز بـگذار باد شاهی کن گـردن لا طمع بـلند بـود

بادشاهی خو هم داده چه طامع‌نه وی . که باد شاه وی چه حریص او طامع وی په گدای شمارلی دی .

**بیت**

هرکه نان از عمل خویش خورد منـت حاتـم طـائـی نه برد

بد بیشرم سړی هغه وی چه‌هیڅ حق ، بسره (۱) لازم نه لری او بی طمع به خواست کا ، بله‌نخښه‌د بی شرمۍ داده چه د بل په شرم نه پوهیږی ، په خپل شرم به خـه‌پوهیږی - چه خپله خور لور ورتـه گرانه وی ، د بل به هم ورته گرانه‌وی . والسلام

**شپږم خصلت د خلقت دی**

یعنی خلق نیکو دالوی خصلت‌دی . که سړی ډیر خصلت نیکولری چه خلقت نه لری داواړه ابته کا ،په محمد رسول‌الله‌صلی‌الله علیه‌وسلم باندی آیت راغی چه منت لره‌دماچه‌ستا خلق می ښه کړ ، چه په ښه خلقت دې عالم خپل کړ - ملوك لره‌بویه چه په دا خصلت دې مټ کا ، څو په توره ، په خزانو کـیږی ،هومره لاترې تیر په خلقت کیږی .

---

(۱) کټ مټ نقل شو.

**بیت**

بشیرین زبانیو لطفو خوشی توانی که فیلی به موئی کشی

خلق دې د هر چا سره ښهلری ، که دښمن یې وی هم دې په ښه یادوی ــ ابومسلم مروزی دتورې،بی همتا تیر شوی دی ، مبارز ، مدبر ترده دپاسه بل یو تیر شوی‌نه دی ، بنی عباس دده په سعی ، په تر دد تر خلافت و رسیدل ،هرگز یی غلیم په بد نه یاداوه ، وې چه زه اودی خوسره په توره اخته‌ښه یو ، په ژبه به څه سره اخته کیږو . تواضع یی هسی وه چه که‌کوړی ، مرضی ورلره راغی ، ور به

پاخید ترغاړه به ووت ، هرگز یی‌په‌مسخروهم څوك پــه بــدنه یادول ، که چا به ورته بدوې ده به ورته‌خندل ، په مال په ځان یې صرفه نه‌وه ، په داد دخلقت او د همت په‌سبب بې‌زروبې خزانو خدای لښکر ورکړ ــ اول یی خراسان مسخر کړبیایی عراق ، بیا بغداد ، هسی‌درجه مرتبه یې وګټله ــ یعقوب لیث درودګرؤ قزاقی اختیار کړه ، عدل‌انصاف یې په لاس ونیوه ، قافله به یــې‌وهله ، نیمایی به‌یې‌بیا وخاوندانوته

ورکړه ، نیمایې به یې په یارانوقسمت کړه . ابــو مسلم مــروزی پوښتنه یې کړه ، خلقت ، تواضع‌هرچه دده خوی‌ؤ ، هغه یې په لاس ونیوه ، درود ګر غریب هم دسلطنت‌چه ددې خصلت څښتن‌شو . خراسان عراق یې مسخر کړل دری پښته‌یې‌بادشاهی وکړه. غرض چه‌ښه خلقت پردی‌خپلوی ، دښمن دوست کوی،بد خصلت خلقت خپل پر دی کوی،

دوســت دښمن کــوی ــ کــه پــه‌توره څوك ووهې پرهار پوی وکړې هغه به وهیرشی ، خو چه درد یې‌ورك شو روغ شو نور بس ــ اماچه په ژبه دې څوك **وپراتې** ، داپرهاردزړه ده ، دزړه پرهار نه رغیږی ، همیشه یادوی .

اګرچه په مذاقو په مسخروڅوك په بد په سپکوالی یاد شی هم نه وهیریږی ، قباحت فساد ترې‌تولدکا ، پاته لابل طور ــ یوه ملوك دبلخ

دخپل امرا سره په مجلس کښې خسوری کړه ، د هغه امرادعورتې نوم یی یاد کړ ، هم یی په دا باندې نزاع په زړه کښې ورته پریوته ، دده زوی یې په بدورته ولمساوه ، کار تر فساد تر خونریزی ورسیده. بویه چه خپله ژبه هر وخت ساتلې وی خندا ، مسخره هرگزنه بویه چه اور په مسخرو هم لګیږی .

## اوم خصلت د مروت دی

دا هم ستوده خصلت دی ، داصالت پیدا کیږی ، چه شرم لری هم هغه به مروت لری . د بی شرم نه دکم ذات نه مروت نه پیدا کیږی ـ اول مروت له خویښانو ، د دوستانو سره دی ـ رسالت پناه فرمایلی دی اب من زوجك یعنی د عورتی پلار هم پلار دی .

### بیت

خسر د سړی پلار دی اخښې وروڼه خوښینی خویندی
د خسر عورتی واړه په حساب کښې لکه میندی

خویښی قربت د نسب ترقربته لا ډیر محبت لری . په شرع یې هم حق سره لازم دی . اماداځای هر کار چه کیږی مروت باله شی . چه څوك په دا شرم ننګ ونه پوهیږی ، مروت به نلری . بل که د همسایه حق په ځای نه کا ، بی مروت به وی ، چه سبا بیګاه سره وینه ، یو ځای سره میشته ، په دردور سره شریك نه وی ، مروت نه پاته کیږی .

### فرد

من به چندین آشنایی میخورم خون جگر
آشنا راحال این است وای بر بیگانه ای

چه دا مروت ورځخه نه وی بل به کوم وی . نور ملوك لره بویه که په عمر کښې څوك دده په کارشوی وی ، یایې د چاکره تورې اوبه ښښلی وی ، هغه دې په یاد لری ، تلافی دې یو په سله وکا ، چه مروت دادی چه دده په خدمت کښې ومری یادده دپلار دنیکه په خدمت کښې مړه وی

چه په اولاد کښې یې لایق وی هغه‌دې خپل اعتباری کا او که نه لایق نه وی نالایق کونډې رنډې پاته وی ،دهغو غمخوارگی ناز برداری دې کا، حق دې د خدمت نه وهیروی ـ بل‌څوك بنده خداوده ټره التـجا پناه راوړی ، په ځان ، په مال ، په ملك‌دې په خسمانه ودریږی . بل د مخ روی دې د هرچا گوری ، ددنیادمال‌د سود دپاره دې هرگز بی مروتـی نه کا ، که هلك ورته رویدار شو هم‌دې روی و منی .

مگر چه د ملك‌کاروی ـ دمال‌په کار وی منل بویه اما د ملك په کار چه بندو بست د ملك په هغـه‌وابسته وی، هغه روی منل نه بویه که په هسی کار چه ملکـی کاروی‌څوك روی دارشی، هغه غلیم دی ، دوست نه دی ، هغه اختیار وچاورکړی نه بویه ـ هر کار چه وی پخپله د دولت خواهانو په مصلحت‌بویه ، اما په مالی معامله کښې روی منل بویه ـ که نه بې مروتی شی .

## اتم خصلت دعفو دکرم

کرم عطا سخاوت ته هم وایی امااصل کرم هغه دی چه گناه وی دی یې وبخښی . کریم هغه دی چه داخوی‌پکښې وی. حق تعالی دا خوی لری نوم یی کریم‌دی . ( لاتقنطو امن رحمة‌الله)ملو کان سا یه د خدای د لطف دی‌بویه چه‌داخوی په دوی کښـې ډیر وی . چه عـفو کـرم نه لـری هـغه دملوك شیم نه لری . عفوه کرم په دوه سببه دسړی دلاسه‌نه کیږی یوپه طول امل چه گنه‌ډیربه‌پایم چه‌څـوك مخـالف‌دی واړه ورك کـړم بل‌ددنیا حرص پری غالب وی ، بل انانیت .دا دری واړه خصلته مـذ موم دی هیڅوك په دنیا تل نه وینه که مال اوملك ددنیا واړه په حرص خپل‌کا،په چابه همیش‌پاتې نه‌شی نه‌به‌انانیت‌خود پسندی‌ده لره سود و کا . فرعون

هامان څه شول؟ ملوك لره بایده‌دی‌چه‌دحقیقت سترگې رنـې کا ، ځان جهان وگوری چه عالم دده محتاج شو په دادې شاکر اوسی ـ که دی‌یې دعالم محتاج کړی وی هاله به‌یی څه‌کړل ـ په‌داشـکر بویـه چه‌د عفـوی دکرم کار له لاسه نه اچوی ، چه لاس یې په غلیم برشی هم داسوبه‌دده ډیره ده نوردې عفوه کرم ورځنی‌دریغ‌نه لری چه تر عفوې نه بهترڅه نشته

لکه دعفوې لذت دی هسی د انتقام نه‌دی. سلطان‌سنجر ماضی‌په یوه‌بادشاه باندې غالب شو ، ژوندی‌یې‌په‌جنگ‌کښی په لاس‌کښېوت ،هرچاگومان داوکړ چه وبه‌یې وژنی ـ سلطان دفتح مجلس وکړ، هغه غلیم‌یې هم پـه مجلس را وباله، طعام یې‌پرې‌وخوراوه ـ پس‌دطعام یې‌جواهر، خوانونه‌یې وغوښتل ، دهغه دوړاندی یی کښیښوول ، فی‌البدیهه هغه بادشاه دادوه بیته ووې :

## مثنوی

بگرفت مرا، نکشت اندر صف کین     با آنکه بودم کشتنی ازروی‌یقین
وانگه بــه طبق‌میدهــدم در ثمین     بخشایش وبخششم چنین کرد ببین

رخصت یې کـړ ، هغه خپل‌مملکت‌چه د هغه ؤ هغه یې وا ړه ورکړ ـ همراهانو ورته ووې چه سلطان داڅه وکړل؟ داهسی غلیم په‌ډیر محنت په لاس کښیوتلی سلطان پریښ ـسلطان وې : په داشکرمی وباخښه چه دی می په لاس کښیووت ،زه‌یې‌په لاس کښېنوتم بل چه‌کرم‌می‌وعالم وته معلوم شی چه سنجر هسی‌عفوه،کرم لری . همراهانو ورته ووې : چه بیا به یاغی‌شی . سلطان وی :چه که یاغی‌شی‌بیابه‌سره جنګ‌وکړو، که نس خله دماپـه لاس دستگیـر کښیووزې‌دغه‌هسی به یې‌پخښم. هغه بادشاه چه‌ژوندی‌ؤ ، دسلطان سنجرهسی لکـه بنده ـ اتسز نام امرا

دسلطان نو ډرو ډیر روریې ونیوه‌امرایانو سعطان وته ووې یاغی به شې سلطان را و باله ، دیاغـی گیـری‌د ماغ یـی پکښې ولیده ، ژر یـی دخوارزم ولکه ورکړه رخصت یې کړ،چه شایې ورتـه شوه سلطان ورته کاته دې ته ، ویې خندل امرایانووته‌یې ووې : چه داهغه شاه دی‌چه‌بیابه مخ په دالوری نه کا . یعنی چه لاړنور به ولیده نه شی ، امرایانو و ې : سلطان دې ووایی اوس‌به‌یې پاره، پاره‌کړو . سلطان ووې :چه‌دادکریمانو روش نه دې ، مروت‌نه‌دی. هرگاه‌چه‌هولته خوارزم لره لاړنوریاغی شو. سلطان یرې ورغی هزار اسپ یوکوټ دی په هغه کښی اتسز حصاری کړ، دسلطان دصدمې طاقت یې رانه‌ووړ،له کوټ و ووت گریزیې وکړ. رشید وطواط شاعر د اتسز مداح ؤ چـه‌سلطان ته یې دابیت ویلې وو .

### بیت

گر دشمنت شاه شود ای رستم‌گرد     یك خرز هزار اسپ نتواند برد
سلطان فرمایلی وو : که رشید په لاس کښیوزی پاره، پاره یې کړئ .
نورشیدیې په لاس کښیووت چه‌جلادولره راغې رشید ووې : چه یوعرض
دما وسلطان وته‌وکاښې ء ! وژونووې‌کوم ؟ داچه زه حقیر جسد هلاك‌یم ،
سلطان می‌دې‌پاره پاره‌نه‌کا، هومره‌وجود می نشته خو دوه پاره می دې
کا سلطان وته‌چه عرض‌وشوسلطان‌خندل، رشید یې‌وباخښه سبحان‌الله
هغه هسی پادشاه عالیشان دبومیه‌اولس د لاسه چه‌غزان یې بولې‌دبخارا
په میدان مات شو، بند کښیووت، مدت دترمذ په کوټ کښی محبوس
پروت ؤ . پس له مدت عیاران راغلل‌سلطان یې دتر مذله کوټه ویوست.
ملوك‌ؤ چه د بلخ په لارې خراسان‌لره‌بیوه ، په ریګستان کښې فوت‌شو .
عفوه کرم د ملوکو لوی خصلت دی ،تعلق په جوهر ذاتې لری . اما دې
خصلت لره ښه‌مصاحبان ،صالحان‌هم‌په کار دی ، چه د ملوك صحبت
دعالمانو دحکیمانو ، ددانایانو،کریمانو سره‌وی ، هغه‌اثر پرې‌وکادعفوی
کرم صفت پرې غالب وی . که دلئیمانو، خسیسانو ، بد ذاتانو، جاهلانو،
مردودانو په صحبت وی هغه تاثیر پرې وشی .

### ابیات :

گر نشیند فرشتهٔ با دیو     وحشت آموز در خیانت وریو
زنهار از قرین بد زنهار     وقنار بنا عذاب النار .

### نهم صفت دتمیز دتأنی

که هرخو نورقابلیت دملوك‌حاصل‌وی ، چه تمیز‌تأنی نه‌لری‌خپل‌کار
ویران کا ، ځان‌دخنداکا . اکثر عالم‌دی چه په خپل مطلب په خپله مدعا
خبرې کاندی وخپل مطلب دپاره سل دروغ رښتیا وایی . که ملوك‌تمیز
ونه کا دعالم‌په خوله‌شی ،خو چه څوك ورته څه ووایی دی تمیز په هغه
کارونه کا ، بې تأنی ژرترخوله څه‌وباسی ، کومه‌ملوکی‌پاتی شوه.داهسی
ملوك باله نه شی ، مفلوك باله شی‌ـ‌که هرخو اعتباری وزیر ، امرافرزند

ورته دچا بد ووایي غوږ دې پرې نه باسي ــ چه دملوکانو دخبرې جارویستل ګران دي. لکه حکمیې ګران دي جاریوست نه شي، که حکیمې وجاروئي مسخره شي هسي چه بی تمیزه ژرتر خوله څه وباسي ، چه بی ځایه حکم و چلوی مسخرګی ده .دترمذپه ملك یوملك ؤ ، ډیر پــه یــوه معشوقه مین ؤ په حالت دمستی یوه امرا عرض ورته وکړ په هغه زمان یې بــې تأنی حکم وکړه دهغه امراء مرتبه منصب یې کم کړ ــ اخرچه تحقیق شول دهغه امرا تقصیر نه ؤ . هغې معشوقې ذبن زی پـه خوله چغلی کړې وه . هغه ملوك

د هغې معشوقی نه آزرده شو ،مصلحت یې د نیکخوا هانــو سره ــوکړ ، زه په دا ښځه ډیر مین یم ،دفلانې امراء عرض یې راته وکړ ، مافکر اوتمیز ونه کړ بې تأنې می حکم وکړ د هغه امراء منصب مې لرکړ، که اوس یې منصب په ځایوم ، دده ګناه خونشته اما د ماحکم سپکیږی. دا خو وشوه اما ددې په سبب داهسی کارونه کیــږی . امرایانو ، مصاحبانو ورته ووې : « چه حکم یې نور مه منه . » وې دا هم نه شی زه پرې ډیر مین یم .

هم په دا کښې یوه شپه پــه سیــل د در یاب پــه بیړی کښــې کښیناست دایې هم ورسره بوتله ،په دریاب کښې واچوله بیا یې پسی ژړل ، ورپسی زیږ رنځړی شو .وزیرانو ورته ووې : چه هرګاه چه هسی ورپسی مرې ولې دې و دریاب ته واچوله . ده ځواب ورکړ : چه زه خراب ورپسی ښه یم نه ملك دماخراب . دې د ما خبره خواره کړه، ما دا خواره کړه . ملوکانو لره بویه چه بې تمیزه کار دی نه کا ، دملوکانو وزیرانو او ورونو لره بویه چه بې وخته و دیوته عرضونه ، نه کا .

**بیت**

باسلاطین چوگفته خواهی راز  وقت آنرا بدان چو وقت نماز

ملوك چه بې تمیزه شي دغمازو،دچغلو ، درشوت خورو بازار ګرم شی . د ملوك نوم دده وی ، کاردنورو ، چــه تمیز نه وی ، عــدل انصاف نه وې . ددی کار مصالــح دوه توکه دی : یو ژرحکم د خولــې نه ویستل . بل جاسوسان چه هره خبره د ملك ، د شهر ، د سپاه ،

د هر کاله ، د وزیر ، د وکیل ، دفرزندانو و ده وته ورسیږی . هم تمیزلره هم نوروکارونو لره دا دوه‌کارونه په کار کیږی . که څوك . دچادلوریـه وملوك وته شکـوه ،شکایت وکا . یا د خوی ، خصلت مذکور وی چه فلانی ښه دی . بایدهیڅوك تر خولې څه ویسته نه بویه. که هغه سړی هرڅو ښه وی ، چه‌ملوك ووایې چه بد، هغه دانور عالم واړه هغه سړی خللی کا ، دبدانوپه شمارشی . که بدوی چـه دیـو ووایې چه ښه دی نور ښه شی .

## مصراع

هر عیب که‌سلطان بپسنددهنراست

پس دا هم بې تمیزې کیږی ، چـه‌دغرض ګویو په خوله ښه بدکیږی یابد ښه کیږی . دا هم بلکه ډیرښه‌هواخواهان سالها خدمتونه په‌راستی کړی .

اهل غرض په دا هسی خبروله‌کاره وباسی چه مذکور پـه مجلس کښې یا په ښکار په هر ځای دچـاکیږی . که هرڅو دچا دلوریه څوك بد ، رد ووایې که هغه سړی هغسې‌وی لکه ورځنی وایې هم ملوك لره نه بویه ، چه په دا مذکور غوږ باسی،یاتر خوله څه‌وباسی۔ بلکه د ملوك صلابت دې هسې غالب وی چه داذکرېې هرګز په خوله مله دوړاندې نه کیږی . یو ملوك ؤ ، دده دامراهجوه چا شاعر کړې وه ، چه یـې ورځنې غوښتل مدحه یې کړې وه‌د هغه امراء ، تکه دشاعر امیدؤ ،

هسی صله یې بیا نه مونده ، رکیکه‌هجوه یې وویله ، د ملوك په مجلس کښې هغه هجوه چا ولوستله ـ په‌هغه هجوې ده تشه خندا وکړه ـ نور هغه هجوه په هغه امر جایزه‌شوه ، هغه امراء آزرده شو ، دده نوکری یې ترك کړه ، بل بادشاه‌لره لاړ شو ، د عزت څښتنو لـره تشه خندا چه پورې وخاندې هومره‌آفت لری چه دکلو کلو نیکخواه ، بد خواه کا ، چه بده خبره په مسخره‌یا په هر طریق تر خولې وبـاسـی لاآفت لری . که نور زر خبرې کادچا پرې غوږ نه وی ، د ملوکانو په تشه خندا دعالم غوږوی . والسلام

## لسم خصلت دعدل د انصاف دی

د ملك د آبادانی ، د خلق دآسایش مدار هم په دا کار دی ـ دا خصلت دی چه څه دی .

چو گردد شا عالم عدل پیشه  شود آسایش گه گه ، همیشه

که کافر وی چه عادل وی ، بهتر هغه مسلمانه چه د ملك په کار ظالم وی .

عدلو انصاف دان نه کفرنه‌دین  آنچه در حفظ ملك در کاراست
عدلو انصاف گر کند کافـر  بهتر از ظلم شاه دیندار است

نو شیروان چه کافر ؤ ، دعـدالـت د صفت کار یـې په لاس نیولی ؤ پیغمبر (ص) ستایلی دی .

### ابیات

پیغمبر که در عهد نو شیروان  برخ گشت چشمو چراغ جهان
بگفتا که از ظلم زان ساده ام  که در عهد نو شیروان زاده ام

حدیث دنبوت پناه دی :

« العدل ساعة خیر من عبادت‌ستین سنة قیام لیالیها و صیـام نهارها . » هر څوك دخپل کـالـه‌امیران دی ، بادشاه په ملك نیولی دی . ملك په کلی دکاله څښتن پـه‌خپل کاله ، عدل هرچا لره بویه .

قوله تعالی : « یا ایهاالذین‌آمنو اقوا انفسکم و اهلیکم نارا . »
الملك یبقی مع‌الکفر ولایبقـی‌مع‌الظلم .

عدل درې حرفه دی : عین ، دال،لام . عین په عربی سترګوته وایـی. دال راهنما ، لام (زغره) . واحالی ،بادشاه ، ملك ، سلطان لره بویه چه سترګې دی په رعیت لری ، رهنمای‌دې وې ، ددیو وښه کار ته لکه زغره چه حفظ د بدن ده ، دی دې هم‌درعیت حافظ وی ، ظلم دې ورنه پریږدی « الرعی لعبادالله و الحامی لبلادالله ».په ده باندې درست شی .
ملك رانی لوی امر دی

### بیت

رعیت نـوازیو سر لشکـری  نه کاریست بازیچه‌و سر سری

دولایت ملك رانی ، سیاست، خلافت ، دخدای تعالی دی . څه آسان کار نه دی . هرچه عدل کا خلیفه درحمن دی ، که جور وظلم وکا ، خلیفه د شیطان دی .

حدیث :

« الوالی اذا کان عادلا فهوخلیفةالرحمن و اذا کان ظالما فهو خلیفةالشیطان . »

حدیث دی چه هره ورځ وعادل والی ته هو مره ورکاوه شی چه دده د تمام رعیت هر نمونځ یې په اویا نمونځونو حساب دی . که مسلمان حاکم وی عادل نه وی ،ستمګار وی څوك ورته ووایی چه عادل دی ، بیم د کفر دی .

که کافر وی څوك یې وستایی چه عادل دی بیم دکفر نشته چه پیغمبر (ص) په نوشیروان مبا هات کړیؤ : « انا ولدت فی زمن الملك العادل . »

قال الله تعالی : « واقسطو ان الله یحب المقسطین . »

اول عدل او انصاف دادی : چه والی دې تر خپل رعیته ځان لوی نه ګنی . دبدر په ورځ رسول علیه السلام تر سایه لاندې ناستؤ، اصحاب په لمر وو ، جبرئیل ورلره راغې ورته یې ووې : یارسول الله ته تر سایه ، اصحاب ستا یاران ترلمر.رسول (ص) زر ترلمر کښیناست . بل دا چه په ځان نه پسندی ، هغه دې په هیڅا نه پسندی .

چه یې نه پسندی په خپل ځان هغه مه پسنده په بل ځان
سلطان محمود په عدل کښېد یوې ښځی دپاره چه لاس یې ور

اچولی ؤ وی واژه . بویه چه دعدل په کار کښې زوی ورور ، بل غریب کم زور ورته یکسان وی . غرضمندفقیر ، درویش دې حقیر نه شماری، په انتظار کښې دې نه لری ، خبره دې ژرواروی ، مقصود دی ژر پوره کا ، واړه کار دې موافق په شرع کا.په خپل فراست ، په عرف ، په صلح په صلاح هرشان چه د خلق خیریت په کښې ، شر او فساد

خوریږی ، حق و حقدار ته رسیږی،هغسې دې کاندی . خود کام ، خود پسند ، خودرای ، غافل ، کاهــل‌باریك مزاج دې نه شی . قانع ، متوکل ، ځوانمرد ، قلندر صفت دې‌اوسی .

صحبت ، مجلس دې دعالمانوله حکیمانو ، له صالحانو وی ، د بدانو ، دبد آموزو د بدګویو ، د بداندیشو دصحبت دې متنفر اوګریزان وی .

## رباعي

پیشی طلبی زهیچکس پیش مباش چون مرهمو موم‌باش‌چون‌نیش‌مباش
خواهی که‌به تو زهیچکس بدنرسد بدگوی وبدآموز وبداندیش مباش

ددنیا مینه دې پــه زړه سره‌لری چه دواړو بدیو سر ، خوددنیا مینه ده :

حب‌الدنیا راس کل خطیئة .ډیر طالبان ددنیا په یوه لحظه کښې ددنیا په ارمان ددنیا نه تللی دی . په‌ارمان په ډیر تلاش ټوله وبل تــه پریږ دی بل یې تار په تار کا .

## مصراع

الله ، الله که تلف کردو که اندوخته بود
به یك لحظه به یك ساعت به‌یکدم دیگر گون می شود احــوال عالم
پس‌له مرګه پښیمانی یې وی په دنیاکــښې
ګټنه دثــواب ، د نیکــۍ ، د نیکنامــۍ
په ځوان ، په زاړه نه ده ،مرګ په حلق ایښی چاړه ده .

## بیت

ای جوان گرچه امید پیریت هستت‌بکوش
زانکــه‌گاهی پیر میماند جوان می بگذرد

سخ د هغه حاکم ، والی چه په‌ځوانۍ کښې به دعــدل کــار کا .
« احب‌التوبة الی‌الله توبة الشاب »

که تر ځلویښت کاله پــورې‌حاکم ، والی دعدل د انصاف په کار

کښې درست قایم نه شو سزاوارددوزخ دی .

الحدیث : « من بلغ اربعین‌سنة ولم یغلب خیره علی شره فلیتجهز الی النار . »

اگر چهل ساله را علم‌و ادب نیست    به تحقیقش نشاید آدمی خواند

محمد رسول‌الله (ص) فرمایلی‌دی : « أنا حبیب‌الله والشاب‌التائب حبیب‌الله . » یعنی زه حبیب دخدای‌یم تایب ځوان هم حبیب د خدای‌دی.

الحدیث : « اناوالشاب‌التائب‌کهاتین فی‌الجنة و اشار بالسبابة والوسطی . » یعنی زه اوتایب ځوان‌په بهشت لره سم‌ځولکه دادوه‌گوتې.

الحدیث : « ان‌للشاب التائب‌عندالله جزاء عظیم . » هر حاکم‌والی چه په ځوانی کښې تایب وی ، کاردعدل او انصاف ، دطاعت د عبادت، دصلاحیت کا . حال به یې دغه‌وی‌لکه ظاهر شو . ډیرو عداو وعید په داباب شته هرچه دخدای تعالی‌پرې‌پیرزووی دا مرتبی به د هغو وی . ذالك فضل الله یؤتیه من‌یشاء .

## یوولسم خصلت دتوکل دی

چه د ایمان قوت لری ، علم‌معرفت لری . توکل د هغه کار دی چه توکل کامل لری ، معرفت حاصل‌لری . اول به غم درزق نه کا چه په سبب په (۱) غیر درزق ضامن خدای‌دی .

**قطعه**

فراموشت نکرد ایزد دران حال    که بودی نطفهٔ مدفون و مدهوش
کنون پنداری ای ناچیز همت    که خواهد کردنت روزی فراموش

بل به نیکی بدی واړه له‌خدایه‌گڼی ، له دوست له دښمنه به یې نه انگاری .

---

(۱) دغه کلمه ښه معنی نه ورکوی .

### ابیات

گر گزندت رسد ز خلق مرنــج     که نه راحت رسد ز خلق نه رنج
از خدا دان خلاف دشمن و دوست     که دل هردو در تصرف اوِ است
که سړی سل هنره لری چــه توکل نه لری هغه واړه هیڅ .

### مصراع

راه رو گر صد هنر دارد توکل بایدش

غواص چه توکل ونه کا ، تر ځان تیر نه شی ، قیمتی در به له دریاب راونه کاږی . عاشق چه توکل ونه کا ، د معشوقی په پالنګ به ونه خیژی . چه توکل لری دسپینو تورو په جهاګ هغه زغلی .

### ابیات

ځوبې نه دی لاس له خپل ځانه وللی     ځوك دتورو په جهاګ نه دی ختلی
اول روغ په توکل کا دځان ځلی     بیا له پسه په باغی بیړه اخلی

دتوکل ځوانانو میندی یا ویاړی یاژاړی . بلکه زړلی لاهله وی ، چه

په ورنی کنبې نغاړی . نور یې هر کله په توکل ویاړی ، ژوندون یې نــه غواړی حرمت او عزت یې غواړی .

### رباعی

کنبینه یوه شپه د څراغ دځنګه     دغه یو خصلت خوزده کړه له پتنګه
چه په سوو دتوکل دمخه راشی     ځان په بلو لمبو ولی بی درنګــه
توکلت علی الله په خوله ویــل آسان دی . اما په زړه ویل ګران دی .

په دا کار کنبې یې چه دخولې قال دزړه حال سره یو وی مرد هغه دی .

**مصراع**

ای من غلام آنکه دلش بازبان‌یکیست

د هرې دعوه برهان او شاهدبویه ، چه توکل په خدای لری ، ډار
به یې بی له خدایه له نور چا نه وی. نقل دی چه یو واصل درگاه په
وخت دغزا چه تورې به وهل شوی،ده به په خر ، خوب کاوه . چاورته
ووی : دا هسی وخت او دا هســی‌فراغت خواب . ځواب یې ورکړ :

**بیت**

مرد را گر نه بدل زنگ شکیست        بستر خواب وصف جنگ‌یکیست

**دولسم خصلت د تربیت اوشــرم د خــپل نــــوازش**

ملوك لره بویه چه په دا کارکښې ډیر دانش او دانایې په ځای
راوړی . بد اصل ، بد طینت بــدفطرت ، بد سرشت ، بد گهر ، بد
ذات دې نه تربیت کوی چه په پلارپه نیکه ، په ذات ، پــه تبار لــوی
خاندان لری ، عاقلان ، هوښیاران ،فاضلان دانایان وی ، تربــیت دې
دهغو کا .

**بیت**

دوتن پرور ، ای‌شاه کشور کشای        یکــی اهل رزم دیگر اهــل رای

په دا کښې هم مبالغه چه دده دپلار د نیکه نمك یې خوړلی وی ،
خدمتونه دولت خواهی یې کړی وی،پښت په پښت یې اعتبار ظاهر کړی
وی ، هم هغه عالم دې تربیت کوی‌چه وفادار دی .

**بیت**

قدیمان خــود را بــیفزای قــدر        کــه هرگز نیاید زپرورده عــذر

چه ملوکانو لوی کړل ، هغه‌لوی شول . چه ملوکانو خوار هلك
کړل ، هغه خوارهلك‌شول . داسړی‌واړه‌هسی دی لکه سره‌زر، سپین‌زر

سیس مس ، ددیو نمانځل هسیدیلکــه غمــی ، مهر وگوته که زروی. که سیس ، مدا ترې په غمی په مهردی د گوتی زر که ډیروی خو توله ډی وی ، قدر یې خو د معلوم دی.امایو غمی دلعل ، دیاقوت ، دالماس

دګو هرچه په گوتی کښې کښیښشی خو قدر قیمت لری زرگونهلکونه پرې ایږدی . بیا مهر چه دباد شاهنوم په کښې کښلی وی هغه څــو مرتبیلری. دملوکانومهرلکهمهرهسیدی. مرتبی، لوی منصبونه چه وچاته ورکوی هسی دی لکه د لعلو جواهروغمی داغمی که په زرو کښې کښیږ دی که په سیس په سر ویل کښې،په هغه غمی پورې هغه په قدر شی. که خپل مهر پکښې کښیږ دی هــمچلیږی . که ملوك خپل مهر ویــوه

کمین سفله ته ورکا ، وزیر ، وکیلیې کا ، واړه عالم به د هغه په حکم شی . څوك که وایې چه دا کارسرهنه جوړیږی په دا څه شی . لکه ښه قیمتی مهر دبادشاه نوم پری کښلیؤدالایق دسرو زروؤ ، ولی په مسو کښې کښیښشو . که منصب، مرتبهوچاته ورکا هم دا هسی . اما که هغه غمی مهر دهغه نه واخیستشیخولکه مس چه ؤ ، هغسی خوار ،

ذلیل به پاتی شی . که په زرو کښېوی ورځنی یې واخلی ، باری دزرو لاځه قدر وی ؟ نه هومره چه لکهغمی د لکونو پکښېؤ سکه بویه چه ښه غمی دجواهر خو په زرو کښېجوړیږی نه مسو کښې ، ملوکاندی تربیت دښو سړیو کا لکه مذکورشول . غرض چه د ملوکانو نظرکیمیا دی . په کیمیا سره سیس هم زرکیږی . پرینه پوهیږی چه پوهیږی.

**بیت**

آنان که خاك را بنظر کیمیا کنند ، آیا بود که گوشهٔ چشمی بهماکنند

هر چه ملوکان څوك لوی کا ،که ډیر عالم د هغو په کمی پاځــی، غوږ دې ورته نه باسی . که یې لوی‌کابیایې دچا په خوله کموی ، دخپل تربیت شرم یې نه پاتــی کیږی ،څوك به پرې باور نه کا .

**بیت**

چوب را آب فرو می‌نبرددانی‌چیست شرم‌می‌آیدش‌ازبردن‌پروردهٔ خویش

که اصل وی که کم ذات وی ،هیڅوك دې د ملوکانو په مهر ، په مینه غره او غلط نه شی . هروخت‌چه لکه غمی ، مهر چه له گوتی واخیست شی گوته لکه وی هغسی‌پاتی شی . دیو به هم خو چه بادشاه خپل منصب ، مرتبه ورځنی رانیسی‌هغه هسی په حال اصلی به پاتی شی .

**بیت**

پارهٔ سیم شود حلقهٔ فرج استر پارهٔ دیگر ازان مهر سلیمان گردد

لکه حال د ملوك د نوازش دی،هسی دې ملوك په ځان هم وپوهیږی.

مالك‌الملك ، ملك‌الملوك . حق‌تعالی ملوکان نمانځلی دی . دادی له دې غمی ده ورکړی دی . که یې‌ورځنی رانیسی په یوه لحظه ، لمحه طرفة‌العین به یې ورځنی را نیسی .دیو به هم هسی لکه دانور سړی هسی پاتی شی .

احوال د شاه جهان خو دادی‌چه معلوم دی والسلام والسلام .

## دیار لسم خصلت د خوف درجا دی

خوف ورجا دې د ملوك ترهسی‌حده و ی، چه که څوك ډیره گناه وکا ، ورځنی امید واروی چه ما به‌وبخښی او که لږه گناه وکا ، هم ورځنی ملاحظه د سر لری .

نوشیروان عادل په طعام‌ناستۀ.**بقاول** طعام را وړ ، داش کاسه‌یې راوړه ، کاسه کږه شوه څه خو آش‌ورځنی توی شو ، د نو شیروان لمن پری ککړه شوه ، هغه درسته کاسه‌دنوشیروان په سر تویه کړه ، درست یې ولاړه نوشیروان ورته‌ووی : چه دا دې ولی کړل چه درسته کاسه دې د آش را باندی‌واړوله ؟ بقاول وې : داوله چه لږ آش توی شو دماپه اختیار نهٔ ،ستالمن ککړه شوه ، تاراته بد نظر وکړ ، په داکاته په لږه گناه هم‌ته قتل فرمایې . ما په زړه کښې

خپل مرگ ولیده ـ ماوې : زه خومرم ، ولی درسته کاسه دده پـه سر وانه ړوم چه ډیر گناهگار شمگوندی می وبخښی ، که می ووژنی هم په گناه به ومرم نه بې گناه ـ نوشیروان وباخښه ـ د ملوکانـو صلابت ، مهابت ، خوف دېترهسیحده وی، چه څوك د دوی په مجلس کښې دم وهلی نه شی . الاهغه چهوپوښتیده شی ، په ادب دی ځواب ورکا . چه په ملك کښې بدکار ، بدغرض ، غل ، رهزن ، مفسد وی ، دده د هیبته دې دهغه څوك همراهیاو حمایت کړی نه شی . بلکه چـه څوك یې روی ، شفاعت کا ، هغهدېتر هغو تیر شماره شی .

خوف په څـو کاره د ملـوك کمیږی ، عالم پرې زړور کیږی . یو په دا چه ډیر په انبوهه کښې کښینی،هرڅوك یې هرکله وینی . لکهزمری چه ډیر لیده شی ، هیبت یې کموی. بل چه دهرچا سره ډیرې خبری کا. بل چه په روی په شفاعـت بـدان بخښی ـ بویه چه په ملکی کارکښې دې اختیار وهیچاته نهورکوی . کـهمور ، خور ، کور ، زوی ، لور ، ورور ، شیخ ، ملا ، دا شفاعت کامنظور دې نه وی . دا خو دې پهخپل فکر مصلحت یا چه تمام هوا خواهوی مستقل ، چه وران کار دده په قوت ساز شوی په استصواب یـېتمام اعتماد لری ، د هغه دخل دې وی اوکه نه په ملکی کار کښې دېدخل د هیچانه وی ـ چه په دا کار کښې به مخل کیږی . یا به ناپوهوی یابه منافق وی ، یا به نادولتخواه وی ، اما په مالی معامله کښې ، چهدمال سودو زیان وی ، شفاعتدهرچا منظور دی که د هلك په مخ زرگونهبخښی هم بهتر .

بل په دا خوف کمیږی چه دخپل مال و ملك پـه جمع خـرڅ نه خبریږی مال یې په تقلب خوړشی،عالم پرې زړور شی .

ملوك لره بویه چه دخپل مالدجمع خرڅ هسی خبر داروی ، چه اوبه یې هم بی ځایه نه توئیږی .بخښش په خروار ، حساب پهمثقال.

خانجهان لودی هسی نویسندهؤ چهدکبوترخانی دانې یې هم پهخپل وقوف خرڅیدی ، دستخط به یېپرې کاوه ، هرگاه چه سړی د خپلـی خونی په حال خبر نه شی د ملك لهحاله به څه خبریږی ، خوف و رجا به ورځنی دچاشی . والسلام .

## څوارلسم خصلت د ملك د انتظام

دا لوی هنر دی ، اما په‌خصلتونو کښې دا درجه وابسته په خصایل دی . که د ملك قوام دی په‌دادی که انتظام د ملك نه وی قوام هم نه وی .

ملوکان څو ګروه رعایا لری چه‌واړه مصلح او اسباب د سیاست دریاست دی . ولایت متعدیه نظـامو انتظام په دالری . کورونه یعنی ازواج اولاد ، خدم ، حشم ، رعیت،ارباب پیشه ، تـجار ، داهـومـره اصناف خلك حق‌په یوه وجود دملوك‌دی ، چه دده په ملك په‌مملکت کښې وی .
که ئر عهده یې ونه وځی ،خسران ددین ددنیا دی . که داواړه کار په یوه ځان واخلی ، وچاوته به‌رسیږی . پس معاون ، مددګار ورلره لازم شول ، چه سررشته د هرکاروتړی ، د هرکار ځواب لـه هغـه غواړی .

ترتیب دواړو ورکا ، چه په‌هغه نسق کار کیږی ، چه برهم‌درهم په کښې واقع نه شی ـ دیوې خولی‌میرمن نه وی ، د میرمنی وینځی نه وی ، مزدورې نه وی ، میرمن که ښه‌نه‌وی ، سررشته دخونی دروزګار ونه تړلی شی ، ودانی دکور نه شی‌چه د ملك سررشته تړلی نـه وی ودانی له کومه ؟
پس اول بویه چه ملوك دې‌اول‌دخپل جانشین فکر وکا چه یوه‌خوله ساه ده په ساه څه ویسا ، که ودهِ‌ته واقعه ، حادثه ورسیده ، جـاه نشین دده تیار وی ـ چه په ملك‌کښې خلل ، فتور واقع شی ، په خلل ، فتور کښې د ملك د دولـت‌زوال دی ، خلك په کښې تلف او پایمال شی .
جانشین دې مشر زوی وی چه‌ولیعهد ، وصی ، قایمقام دده په ځای وی . که نور زامن یې ډیروی لایق‌ترمشر وی . هم حق د مشر دی . که زوی نه لری ورور ، وراره که دا هم‌نه وی تره ، تربور . که داهم نه‌وی یوبل اصیل زاده په ځای د فرزندی‌لوی کړی ، چه داهم حسبی فرزند

باله شی . القصه هرچه ولیعهد کاوهغه ته دې ښه استقــلال ورکا ، اعتبار دې په عالم کښې زیات کا .

علم ، هنر دولایــت دسیاستدې ده وته ښایه شی . که نور اولاد یې ډیر وی واړه دده په اطاعتراغبکا ، چه دولیعهد د حکم ، د امرعدول بی امری ونه کا ، چه یو پــه کورکښې ښه لایق پیدا شی ، په کښې سند او اتفاق وی ، هغه واړه سرهپه عزت ، پــه دولت کښــې عیش وعشرت کا .

که په بغض پــه حســد سرهاخته شی واړه په نکبت گرفتار خوار زار شی .

چنگیزخانکافر ، خوگ خوړؤ.اتفاق یی په کام په قبیله پهخیلخانه کښېو ، پلاریې د یوې ولکی ځښتنؤده په ربع مسکون خکم وچــلاوه . واړه اولاد قوم یې د دولت ځښتنشو .

## بیت

حسنت به اتفاق ملاحتجهانگرفت آری به اتفاق جهان میتوان گرفت

په وخت د مرگ د چنگیزخانوصیت و اولادوته داؤ ، چه درسته یې راوغوښته یو غشی ددستې نهؤکیښې و یوه ته یې ورکړ چه دا مات کړه ، مات یې کړ – بل غشی یــېدیوه سره مل کړ ، سره دوه شول ورته یې ووې : مات کړه هغه یــېهم مات کړل . بیایې درې غشــی ورکړل ، بیا څلور ، بیا پنځه چه پهلس په دولس ورسیده ماتولی نــه شول – ورته یې ووې : که سرهجداجدا شواستئ . هسی به مات شئ لکه یو یا دوه درې غشی – که واړهسره یو ځای په یوه اتفاق واستئ ځوك به مو مات نه کا لکه سره ډیرغشی . دېو واړو هغه نصیحت ومانه، تر اوسه پورې دده اولاد بادشاهیکا ، چغتی دديو نوکران ؤ ، هم تر دولت ورسیدل – هرچه دی دولتعزت لره ځو اتفاق دی . هم دچنگیز خان پهاحوال کښې په (روضةالصفاء)کښې مذکور دی چــه لابادشاه نهؤ اولسیؤ ، اولس یې هسی حکم مانهچه که عورت میړه به یې وبله تــه ویزاره ول ، چایې حکم نه نوراوه .

پس تر ولیعهد وزیر بویه .وزیر ته دې هسی استقلال ورکـړ شی چه د هرچا رجوع په ده وی ـ عزت ، حرمت دې تر ولیعهده کوزنه وی .

بیا وکیل چه په خلا ، ملاورته‌عرض رسوی . بیا خانسامان چه‌دکور وسپاه‌دخرڅ نه خبرېږی. بیاخزانچی‌بیا بخشیان ، عارضان چه دسپاه دلښکر په حال خبر دار بیداروی .دمواجب دعلو فی حقیقت په عرض رسوی بیانائبان په هر ملك تعیین‌کول ـ واقعه نویس ، فوځدار بیا د لښکر میر لښکر ، سپه سالار ،نور امیران په لس سواره په شل ، جماعت دار ، بوز باشی ، د ملك‌زمینداران ، ملکان ، دلارونګاهبانان څوکیدار ، قاضی ، مفتی ، محتسب،کوتوال ـ لکه ترتیب انتظام دی‌هسی دوجود دی .

زړه لکه بادشاه ، غوږ سترګی‌وزیر ، وکیل لاس وپښی ، کار کن نور اعضاء لښکر . ډیرې چارې دی‌چه په وجود متعلق دی ، دوجود کار پرې جوړیدلی دی مځکـه آسمان ،عرش ، کرسی ، اوه ستوری ، لمر اوزمکه ، باد اوبه داواړه هم مثال‌دوجود لری ـ سنت الهی په داجاری دی څلور مقربی فرښتی ، جبرائیل،میکائیل ، اسرافیل ، عزرائیل چه‌په کروړونو بی حسابه فرښتی د دوی‌سره دی ـ که دا انتظام نه وی‌جهان به نه‌ؤ . والسلام .

## پنځه لسم خصلت د همت دی

رسالت پناه لره نبوت ، همت‌دواړه سره جبرائیل رواړل په دواړو کښې مختار کړ ـ ده په کښې همت‌ونیوه ، نبوت هم ورغی . هر برکت چه دی په همت کښې ، لکـه سرهومره یې درد سر ـ که همت نه‌وی دردسر به څوك وړی . واقعی حادثې‌په هرچا راځی ، په دولتمنو خو لا ډیره راځی . حادثی نور چیرته‌نه‌دی‌په خپل کور کښې دی .

ملك لری ، لښکر لـری ،خزانی‌لری ، ډېری چاری‌لری‌دا‌په‌معنی کښې واړه حادثی دی کـه دا نه وی‌حادثی به له کومه وی ـ چه هیڅ نه‌لری ، غم هم نه لری .

**بیت**

دستار نداریم ، غم هیچ نداریم    چون هیچ نداریم غم هیچ نداریم

دسوخته والپتهؤ کوکی په درباردګلرنګی معشوقی دی . په غوشیو هیڅوك کار نـه لری ، پـه خپـلغوشایه تپی .

**مصراع**

چون روزګار بیش غم روزګار بیش

ډیر ملوکان په ډیر دولتکښېمسی په ځان سترړی ناست وی چه دځان خلاصی په دعا غواړی . امادانه بویه چه کم همتی کیږی .

**بیت**

شیر را سلسله درګردن داد همهشـب
فـارغالبال بـر اطـلال دمن میګـردد

مزری دخپل کار نه جاروزیځه شو که زنځیرونه یې په غاړهکښې پراته وی . هم دغه زنځیرونه ددیولویې ده ــ ولی په تروړیو ګیدړو څوك زنځیرونه نه اچوی .

**بیت**

ګلفروش ما که خواهد ګل به بازارآورد
بایداول تاب غـو غـای خریـدار آورد

چه لویې چارې غواړی دلویوغمونو پروادې نه کا .

**بیت**

هیچ شی نیست ز زیباو زشت    کونه حکیم از پـی کار سرشت

هر څوك چه یې پیدا کړی دیدیوه کار دپاره دی ، دسړی پهلاس هیڅ نشته .

## مصراع

خاص کند بندهٔ مصلحت عام‌را

یوچه په ډیرو کښې و نمانځی،خاص یې کا ، دعامو د مصلحت‌دپاره وی ، چه په هغه‌کار دپروردګاردلوریه‌مامور دی ، خو پړدی په اختیار په همت دی . بویه چه په همت کښې ددوستی چاڼ چینڼ بی همتی دې نه‌کا ، که هر څو کار ګران وړپیښ‌شی پرې دې همت وکا .

## بیت

به هرکاریکه همت بسته گردد    اگر خاری بود گلدسته گردد

که ډیرې حادثی واقعی پـرې‌راشی ، زړه دې قوی لری ، واردې خطا نه کا .

## بیت

کار اگر مشکل وگر آسانست    پیش الطاف خدا یکسان است

دده خو همت بویه مشکل به‌خدای آسانوی . که واړه ملک‌و مال یې په یوه ورځ دسیلاب په مخ‌ولاړشی‌زړه دې لرو برنه کا ، په زړه دې داوایې : چه هغه چه راکړیؤ ، هغه‌یې را څخه رانیوه که یې راکوی بیا به یې راکا .

## مصراع

با که وفا کرد که با ما کند

دنیا له چا سره وفاکړې ده چه‌له ما به یې کا . دا هومره ملوکان څه شول ؟ ددیوملک‌خزانې څه‌شوې؟خو وارؤ په هر چاتیر شو ، په ما به هم تیریده . دچا تملق چاپلوسی‌دې‌نه کا چه کم همت یادیږی ــ مرګ ښه دی نه په بی همتی کم ننګی‌کښې ژوندون ــ که تمام عالم همه دده په کمی شی ، پروادې د هیچانه‌کا ، خپل هوډ ، همت دې د لاسه نه اچوی .

### ابيات

گر گزندت رسد ز خلق مرنج | که نه راحت رسد ز خلق نه‌رنج
---|---
از خدا دان خلاف دشمن‌و دوست | که دل هردو در تصرف اوست

له همت له تلاش دې په خپل کار کښې هيڅيرې سستي ، کاهلي و نه کا . دسليمان غوندې سړی هم گوته له لاسه لاړه وه بيا ورغله ـ که تنها پاتې وی ، اختيار دې تر جهان‌تيروی . څوبې سروی هومره دې شورو شر وی .

### مثنوی

څو په تن د عاشق سرشته | په کښې هومره شور شرشته
---|---
سر چه وځندی ځوا نان | څه زمری څه يې ها تيا ن
سر گيا ورته بنکا ريږی | چه همت لری هو ډيان
سر دې ځی همت دې نه ځی | تل څوك نه وی په جهان
ځان ساته نه شی له مرگه | که هر څو ساتی خپل ځان

### شپاړسم خصلت د حلم

عکس‌د حلم قهر ، غصه (والكاظمين الغيظ والعافين عن‌الناس . ) که ډېر سړی وچا ورکا ، چه حلم‌نه لری په يوه قهر هغه واړه ورکړل ابته کا . په حلم په برداشت سره‌وران کارونه سازيږی ـ په نه حلم ودان کارونه وران شی . حلم هغه‌دی چه هيڅيری خجالت ، پښيمانی په کښې نشته . که ډيره گناه ،خطا له چاوليده شی هم حلم کړی

بويه . د ملوکانو لاس په هرڅه‌رسيږی که دچا سروهی هم قهر خو دې نه کا ، تر خوله دې رد ، بد نه‌وباسی ، هرگز دې د چا سره مجادله مباحثه نه کا . بلکه په بنکنځل په‌ناسزادې هم چه واروی د حلم دمخه دې غوږ نه باسی . يو ملك دخراسان‌ؤ ، دده‌پلار وته‌چابنکنځل وکړل، ده ورته سر پای و باخښه ، يو څو نوروهم تتبع د هغه وکړه ، ورته يې بنکنځل وکړل ـ وهغوی‌هم سرپايونه‌ورکړل ـ ورته يې ووې : چه بابا

نور به نه زه سرپایونه درکړم ، مه‌تاسی را تــه ښکنځل کــاږی ــ چــه زه اوس ښه خبره په غوږ واروم ــ په‌هغو کښې یوه مطائبه ورسره وکړه چه‌موږ به‌هسی په‌زوره‌ناري ووهوچه‌ته یې واروې . هغه ملوك و خندل چه زه به په دغه لا رنه ځم هغو وې‌چه موږ به په دربار رادرومو ــ هغه ملوك ورته وې : چه سکه صلحه به‌وکړو ، هرچه تاسی غواړئ هغه به زه بی‌بدو ویلو وتاسی ته در کوم ،په دا شرط چه د ماعیب ووینئ راته یې ووایې ــ روزنه یې مقرر کړل‌همیشه به هغه سرتیر به‌ورته‌ولاړؤ ، دده عیبونه به یې ورته شمارل هرعیب به چه هغو دده لیدلیؤ یابه یې

اروېدلی ورته به یی وی ــ ده بــه‌د هغه رنځ علاج کاوه . هغه ملوك به شکر وکیښ چه د حلم د دولت ، داهومره عیبونه ظاهــر شول . ګنــه ماوته به چاوی . خپلو وزیرانو وته‌په غصه شو چه د ما یاران دوستان همدا دی چه دما عیبونه یې راښکارکړل ما یې علاج‌وکړ.تاسې داهومره عمر راته نه وی . ملوك چه حلیم وی‌د حلم په سبب هر څوك ورته څــه ویلی شی او که قهار وی ، که هزارعیــبونــه یــې وی ، څــوك ورتــه څه ویلی نه شی ، په هغــه رنــځ‌ګرفتاروی . بلکه د ملك د دولــت زوال هم په دا کښې دی چه قــهرجن وته څوك دم وهلی نه شی ــ یو دبلخ ملوكؤ ، قهار غالب ، غلیم‌پرې‌را روان شو ، هیڅا دډاره ورته‌ویلی نه‌شو چه غلیم درباندې راځی ، ترهغه وخته پوری چه کوټ یې محاصره کړ . وخت د بهارؤ وزیر ورته ووې:څه عجب ښه بهار دی ، ملك رنګا رنګ ګلزار دی ، که پاسه دکوټ‌په برج و دریږې ښه تفرج و تماشا به وکړې ــ که دی راغــی پــه برج‌وخوت چه ګلزار به ګورم ، سرې زرغونې ، توری ، سپینی رنګارنګ‌خیمی ، خرګا ، بارګاه یې ولیدل .

وزیر وته یې وې دا څــه ؟ وې‌د فلانی غلیم لښکر دی موږ د ډاره عرض کاوه نه شو . ده وی چه‌عجب‌مردك دی ، چه په دا بهار راغــی ، هم یی ځان د ذوقه ویوست هم یی‌زه دایې ووې نور د کوټ د بــرجــه کوز شو ، د جنګ تیاری یې کړې‌نه وه ، په شپه لــه کــوټــه ووت ، وتښ ــ ملك دبلخ بل حریف ونیوه‌چه حلم نه لری حال‌یې داوی والسلام

## اولسم خصلت د غیرت دی

غیرت په ډیر توکه کښېږي‌شته‌اول په دین په مذهب کښېږي ، بیا په ملك په مملکت کښېږي ، بیا د محـل‌دکورونو په محافظت کښېږي ، نور هم شته اما خلاصه دا درې قسمه دی .په درې واړو کښېږي څو غیرت ډیر لږی هومره اعلی ـ اما بیا مرتبه دهرکار شته چه افراط تفریط په کښېږي مذموم دی . ددین د مذهب غیرت‌هسی بویه چه که څوك د قاضی ، دمفتی د اعلام انحراف‌وکا یادمحتسب‌سره څوك په شدت شی ، دا ځـای که سر ځی که مال ، که ملك صرفه‌نه بویه ـ که په دین کښېږي مبتدع پیدا شو، چه رخنه‌په دین کښېباسی،دا ځای لاغیرت بویه ـ بل د ملك د مملکت که دده په ملك باغی پیداشو ، دده رعیت آزار وی یایې مال په تاخت په تاراج وړی ، دا ځـای‌غیرت بایده دی چه دده درعیت یو زړی څوك یوړی نه شی ، په ملك‌کښېږي رعیت سوداگر ، غریب غربـه فراغت روزگار کا ، غـل ، رهـزن‌متمردی مزاحم نه شی .

بل چه دمحل دکورونو د از٠واج‌دوابسته‌ؤ وی‌غیرت. بل چه دازدواج دمحل د مستوراتو وی ، دا غیرت دې‌هسی وی چه مچ دچاپه وجودکښېنی هم دې پر غیرت شی . غیور دې ترهسی حده وی او په دا کښېږي دوه قسمه غیرت دی : یو غیرت دعاقلانوبل د جاهلانو . دجاهلانـو دا چـه بدگومانی کا ، جاسوسی کا ، په‌تش گومان یا په تش اروېدلو خبره زیاتوی یا څوك وژنی یا څوك وهي،داغیرت نه دی دا جهل حماقت دی تر محمد رسول‌الله بل څوك غیورنه‌ؤ په‌افـك د بـی بـی ( عایشی ) چـه مشرکانو مخ تور کړیؤ ، څو حلم‌وتحمل سروروکړ تر هغه پورې چه باطل وبله روښن شول آیت نازل‌شو ( الطیبات للطیبین والـخبیثات للخبیثین . ) د عاقلانو غیرت دادی‌چه هرگزپه خپلو مستوراتوبدگومانی نه بویه ، جاسوس جاسوسی نه‌بویه،غوږ داری وسواس نه بویـه ، دا کارونه څه هسی نه دی چه پټ پاتی‌کیږی .

**بیت**

خوشست ازبخر دان این‌نکته‌گفتن  که عشق و مشك را نتوان نهفتن

**بیت**

که په سل پردی یې نغاړې — پیاز ښکاره کا خپلی غاړی

هرچه خدای تعالی په ازل پاکې پیدا کړی دی ناپاکې به نه شی چه ناپاکی دی. اغما ض اولی، دفع کو لیې په هسی شان چه خلاف له شرع واقع نه شی . که فسادیې ذهن نشین شی تر نظر اچول ، ښوروول هره ورځ مړکت دی او که نه په زهر قاتل والسلام .

**اته لسم خصلت د حزم د احتیاط**

د ملوکانو دوستان که وایې هیڅوك نشته تر فرزندانو پوری داچه څوك ورته خوش آمد وتملق تسلیمونه کا واړه دځان دپاره که دی په حیات صورت دځایه پاڅی یاخلع شی ده سره به هیڅوك وفاونه کا، واړه به هغه بل لره وزغلی . هر څوك د خپل غرض بنده دی . که یو خوار ذلیل سړی ملوك تربیت کا، ترلویه دولته ترمرتبی ورسوی چه یوه ورځ یې زړه بدشی هسی به نه وایې چه څه شو، ورځنی به پر خاش کا ، که ښکاره له ډاره نه وایې پټ به ورځنی بدوایې — بل د دولت دمعشوقې طالبان ډیر — که زوی وی چه ځوان شی پلاریې لاهسی زوړ نه وی ، رضایې داوی چه څه دا پلار ومری زه یې په ځای کښینم . اکثر به دا هسی وی الا ماشأالله . پس وروڼه ، عزیزان خولابلا په داکار کښې تردښمنونه له دوستانو چه خپل وی لاحزم احتیاط بویه .

**بیت**

د دوستانو په دوستی نشته امید — ددښمنو په تملق څه اعتمید

دوستان ، دښمنان د احتیاط په کار کښې سره یکسان دی . اماله دښمنه چه دښمنی صریح ده هغه خوخود احتیاط لازم دی ، کیږی . هغه هم په دوه وجه دی یو دښمن ذاتی بل عارضی اوعاریتی . ذاتی هغه دښمن دی چه د ملك طالب دې وی، خرخشه دعوه سره په ملك وی ، لکه دوه بادشاهان . دامیرڅی ذاتی ده. بل د مذهب لکه د هندو د مسلمان، دسنی درافضی دامیرڅی ذاتی ده ،لکه د مرك د پیشو ، دسپی د غرڅه،

دهاتی د مزری دباز دتارو دا هرگزدتلو نه دی . عارضی لکه دوه هاتیان
سره جنگ کا یا دوه مزری یا دوه‌بازونه یا دوه سپی یا دوه پیشو دا
ذاتی غلیمی نه ده عارضی په‌یوسبب‌سره‌وشوه .

د عارضی میرڅی امید درغیدود آشتی د اصلاح شته اما د ذاتی
امکان نه لری . هر څوك د ملـوك‌دملك غلیم دی یا د مذهب تربله‌غلیم،
احتیاط تر هغه اولی ـ که په قول‌په عهد یې باور اعتبار وکا ضرر به
بیا مومی ، که یی لاس رسیږی ددې‌هسی غلیم فکر دې بر اصل کا .
بل دوستان فرزندان ، ورونه،وریرونه تربرونه ، خیلخانه عزیزان،
دصله رحم حق په روایت واجب‌دی.حدیث د پیغمبر په دا باب وارد دی
چه بدترین سړی هغه دی چه حـق‌دصله رحم نه په ځایوی . بلکه پـه
جهان کښې چه څه سر لښکر واهه‌شی ددیو دپاره ، پس بایده دی چه

داعالم په اخلاص پـه اتـحاد کښې‌وازمیل شی . اول آزمایش د مال
چه ددیو اتحاد دې په مال وگوری ـکه مال د سردار دریغ نه وی ، پـه
ملك اړنه وی هسی به په سر هم‌اړنه وی . دادې خپل خان کښې ،
درسالت پناه سره هم ابو جهل ،ابولهب مخالف ؤ ، امیر حمزه (رض)
عباس (رض) ، علی (رض) ، طلحه(رض) ، زبیر (رض) موافقؤ .
تر دا به څه چه هم سره زرهم‌خوش بوی ـ درد لکه خپل ورونه ،
زوی ، ترونه ، تربرونه ، خیلخانه‌لری ، بل به یې چیری لری او که
مخالف وی ، له تا غواړی خپل دوځنی‌ساتی ، ستا دبدخواه سره ناسته،
پروت کا ، ستا په بدی یې زړه بښه‌کیږی ، له تا بدوایې بښیگڼه دې بده
وربښکاریږی . دا ذاتی غلیم دی ولی‌چه ملك شریك دی ، په دې باندی
لحظه صرفه نه بویه . څولا روغ‌یې‌علاج‌یی ژرکړه .

**بیت**

سرچشمه شاید گرفتن بـه میل چو پر شد نشاید گذشتن به پیل

داهسی سړی به ناست وی‌ږاقعه طلب ، هرکله یې چه وارجوړ
شو نیت به وهاری .

**بیت**

علاج واقعه پیش از وقوع بایدکرد    دریغ سودنداردچورفت‌کارازدست

**قطعه**

دزړه حال تر خولی ښکاره شی    چه له تانه بدګویې کاستا غلیم‌دی
چه د هسی غلیم کار دوخته وکا    دهغه ودانایی ته می تسلیم دی
په یوه بخری هم سیزی ښارونه    غره مه‌شه چه‌غلیم راته سقیم دی

**نولسم خصلت دورع‌دطاعت د عبادت دی**

د ملوکانو ورع خو فتوی ده .چه په فتوی ودریدل ځان دې هسی شماری لکه متقی مشایخ ، فتوی به‌یې د تقوی تر دولت ورسوی . هم دغه تقوی ده چه فتوی ده .

**بیت**

پرهیز گار باش که دادار آسمان    فردوس جای مردم پرهیز گار کرد

اصل پرهیزګاری داده : چه‌په ځان یې نه پسندی په بل دې نه پسندی .

درعیت د سپاه توابع خویندی،لونه دې هسی شماری لکه خپلې خویندی ، لونه چه دده دربار امانتګاه ، صیانتګاه وی ، دهرچا ورته ورتله بی دیاره بی وسواس هورته‌سبا ، بیګاه‌وی. مأکولات، مشروبات دې د حلالی وجهی وی . ملبوسات،پوشاك یې که دشبهی دمال‌وی‌شاید هرچه حرام مال وی هغه به خـرځ‌دعمارت ، دوسلې داسلحی وی . هرچه مسکرات مناهی وی له هغودې‌په بیارته اوسی . محبت‌دې له‌عالمانو له صالحانو کا ، پنځه وخته لمونځ‌دې په مسجد کښې په جماعت کا ، که مسجد ورته یې فرصت نه وی‌جماعت دې پـه کور وکا . حدیث دی درسالت پناه : چه پنځه وخته‌نمونځ ګذاری ، حلال حلال ګڼی ، حرام ، حرام شماری ، ځای یې جنت‌دی .

د نمانځه ثواب له جماعته ډیردی . جمعه هم همیشه ګذارل قـوت دایمان دی .

څلور رکعته سنت د مازیګر ،دوه رکعته نفل د ماښام ، دوه رکعته دڅاښت ، که ډیر نه وی دا خو بویه.که نمونځ د تهجد ګذاری ، ددنیا په ملوکی کښې دآخرت ملوکی همداده.

**بیت**

ګر توانی هـر سحر بیدار باش منتـظر از دولت دیـدار بـاش

**مصراع**

ګر دولت دین خواهی با صبح درآمیز

درعیت په کوندو ، په یتیمانودې نظر لری ، ظلم ، تعدی په رعیت روانه لری . ظالم ، ستمګـار دې‌وربـاندی حاکم نه کا ، موافق دشرعی په حکم ورسره کار کا . له عشری‌زمکی دې عشر اخلی ، له خراجی‌دې خراج اخلی . دهند ملك واړه‌خراجی‌دی . دکابل ملك د امیـرالمؤمنیـن عثمان بن عفان (رض) په خلافـت‌کښې فتحه شوی دی . د پیښـور ملك سلطان محمود فتحه کړی دی .ترلاهورپورې‌یې تسخیردملك کړیؤ. ډیلی سلطان‌معزالدین‌غوری فتح‌کړیؤنورورد ، وظیفه ، خیرات ، تصدقات دې‌دوست لری ، خپل لطف ، مکرمت‌دې له هیڅا دریغ نه لری ، خیرخواه د خلایق دې وی .

**بیت**

خلایق را چو نیکخواه گـردد باجماع خـلایـق شاه گـردد

زړه دې مایل وښو چا رو ،وښوکارونو ته لری ، پاك اعتقاددې وی .

**رباعی**

هومره ذره چارده په هغه کښې‌چه‌لـر بر شـی
پـاك مـو من‌په شرع بیا په شرع کښې کافرشی
غرونه تر میان نه دی نه تر میان دی‌لوی‌سیندونه
زړه چـه چیرته کوږ کـړې و هغه لوری ته ورشی

ډار په هر نفس کښې له کفره‌بویه نه له ګناهه . که یوه ذره حرام وته حلال څوك ووایـی نـور لاړ ـدانایی هم دا ځای بویه چه عقیده په ځای وی ، ګفتار ثابت بویه ـ چه څه‌ګڼل ، بایلل په ژبه کښې دی . چه ژبې خوار کړل هغه خوار شول .فضیحت رسوایی دجهان زیان لری. زبان دشمن جان ، که سودیی هـم‌شته اما .

**قطعه**

په زبان کښـې دی کارونـه　　　هم سودونه هـم زیـا نونـه
که له زیانه یی خـلا صیبږم　　　زه یی مـه وینـم سودو نـه

ډیرې عو رتی نه بویه ـ عور ته‌چه له ښه خاندان وی ، په صورت ښایسته په سیرت آراسته د دنیابهشت ده .

**مثنوی**

ښه دلبره (۱) قـاصـرات الطـرف‌ای یاره
په خیرات(۲) حـسان جـوړه ښـه دیـداره
په عرباً (۳) په اترابـاً (٤) سـره‌پسندلی
په حوراً(٥) او عیناً (٦) درست سره ګلزاره
خدای کـه دا هسی دلبـر و چـاته ورکا
ښایسته‌د جـنت حـوره شـه تـرې جاره
نه دا هسی رنګ یوه په کورکښې‌ناسته
نه بد رویی ، بـد خـصلتی صـد هـزاره

(۱) قاصرات الطرف : یعنی‌چه‌نظرې په خپل میړه وی ، بل سره نه وی .

(۲) خیرات حسان : یعنی نیك‌خوی ، نیك روی

(۳) عربا : یعنی دوستداره ، مینه په میړه ، پـه ډیره میـنه ، مباشرت نه‌میړه کاچه کمال لذ تورځنی میړه حاصل کا.شهوت‌انګیزه.

(٤) اترابا : یعنی فرزنـدان‌راوړی .

(٥) حورا : یعنی سپین یـې‌دسترګو سپین ، توریې تور .

(٦) عینا : یعنی غټې سترګی.

که چیری ډیرې وی موافق دې په شرع ورسره سویه نګاه لری .
که چیری لربرشی میاشت پهمیاشتدې ورځنی معافی غواړی . بلکه هفته په هفته ـ که یې سوریتیوی ، حقدې موافقپهشرعپهځای لری .آسوده او خوشوقتی دې ساتی ، چه یېورځنیاولادوی هغه دې لاعزیز مکرم ساتی والسلام .

## شلم خصلت د استغفار

هیڅوك به نه وی چه له ګناهیه خلاص وی . چه وجود و شو ، ورسره ګناه وشوه . چه جامه وشوهورسره خیری وشو . دجامی خیری په سابون لری کیږی ، دګناه خیریپه توبه په استغفار لری کیږی . استغفار هر چا لره بویه . بلا ددېوتر غاړی دی . حق تعالی په تائبانو هسی مین دی لکه په عابدانو . ګناهکه په قصد وی که په نسیان پهواړو کښې امید واری د مغفرت شته .

(لاتقنتوامن رحمةالله ) کهاویاځلهبنده په ورځ ګناهوکا ، پرېتوبه وکاړی حق تعالی به یې قبلوی .سړی چه ګناه وکا د کینې اوږې فرښته قلم واخلی چه کښم ، دښیاوږی فرښته ورته وایې چه ودریږه مه کښه ، ګوندې توبه کا . چه مؤمنتوبه او استغفار و کا د ګناه په ځای ثواب وکښی .

دمؤمنانو دګناه حمال عزازیلدی ، اما ګناه سپکه ګتلی نه بویه چه بیم د کفر نعو ذ بالله منها .که ذره ګناه وی در وند ګڼلی بویه ـ چه زر ګناه زر توبه، دا همدلالت په سپکوا لی د ګناه کا . دمرد تو به هسی بویه لکه مرد ،چهخویوه وینا وایی هوهو ، نه نه . استغفار په ډیره وجه وایه شی .ژبه له استغفاره روز و شب قراره کړی نه بویه .

استغفار د شیخ عبدالقادرجیلانی قدسالله تعالی دادی ـ وظیفه د مؤلف اسنادیی ډیر دی ، چه څوكيې وظیفه کا ، بی له ایمانه به له جهانه د حق په فضل لاړ نه شی .په وخت دسحر ویلی بویه چه اودس وشی ، دسنتو پخوا یا چه نفلدځابست ګذاری ترې پخوا ، یا هر وخت چه یې مقرر کا . هره ورځدېدوست لری . البته دادی :

**بسم‌الله الرحمن‌الرحیم**

الهی اگر از من بیچاره گناهی‌یاخطایی یاکفر یاکلمه‌کفر یاشرکی‌یا ریایی یاگناه‌صغیره‌یاکبیره یا نمیمه‌زنای یا غیبتی یا طیبتی یا فحشی یا بهتانی یا دروغی یا لهوی یالغوی‌یا حسدی یا حرصی یا عجبی یاکفر یانفاقی یانا حقی یاتحریمهٔ‌یاتلجیه‌یا نغمهٔ یاترك‌امانتی‌یاترك‌صیانتی‌یاظلمی یا تعدای در حق آدمی یا جانوری یاترك رعایت در حق استاد و پیر و مادر و پدر هر یکی از ایشان را که‌به حکم فرمان خدای تعالی جل‌جلاله وعم نواله و خبر رسول‌الله صلی‌الله‌علیه وسلم می شاید یا فسقی یا فجوری یا بدعتی یا ناکردنی یاغفلتی‌یا تقصیری یا آنچه غیر فرمان‌خدای

تعالی جل جلاله و عم نواله و آنچه‌غیر فرمان شرعست عمداً یا به فراموشی کرده باشم یا در خاطر ماگذشته یا به زبان رفته باشد قولا و فعلا ، خاطراً و ناظرا ، ظاهرا وباطناً ، لیلا و نهاراً ، سرا و جهرا ، به دانستگی یا به نا دانستگی کرده‌باشم ازآن جمله گناها باز آمدم پشیمان و تایب شدم ، توبه نصوح‌از تو طلب میکنم که بار دیگر ازینها در وجود من نیابد آنچه که نا کردنی‌هاست نه کنم از سر تجدید مسلمان شدم و ایمان آوردم اقرار به‌وحدانیت‌ذات قدیم جل جلاله کردم به آنچه خدای تعالی فرموده است اقرار کردم‌بدانچیز و آنچه نه فرموده است بیزارم . به آنچیز ایمان آوردم‌بدانچه ایمان آورده است محمد رسول‌الله صلی‌الله علیه وسلم .بیزارم از آنچه محمد رسول‌الله

بیزار و دور بوده است به یقین وصدق دل می گویم : لااله الاالله محمد رسول‌الله . اشهد ا ن‌لااله‌الاالله‌وحده لاشریك له . و اشهد ان‌محمدا عبده ورسوله . سبحان‌الله والحمدلله‌لااله الاالله والله اکبر ولاحول ولا قوة الا بالله‌العلی العظیم . آمنت بالله‌کما هو باسمائه و صفاته و قبلت جمیع احکامه آمنت‌بالله و ملائکته وکتبه و رسوله والیوم‌الاخر ولقدر خیره وشره من‌الله تعالی والبعث‌بعدالموت .

الهی هم برین اقرار و تصدیق‌ابدالابد به لقای خود مشرف‌بگردانی و ثبات بخشی به حق حبیب خودمحمد مصطفی صلی‌الله علیه وسلم

وآله و اصحابه اجمعين . استغفرالله‌من جميع ماكره الله قولا و فعلا ، خاطرا و ناظرا و اقول : لااله الاالله‌محمدرسول‌الله .

## خاتمه د كتاب

ذكر د جهالت د حماقت ، اختلاف د طبايع ، د مزاجونوتبديل، داخلاقو ضميمه په حميده،دازده‌کړه‌چه داهومره کتابونه احتياج د پير د استاد ، د جهل دحماقت دپاره‌دی‌چه واړه ر زايل له ديو دو اړو نکو هيده وخويونو چه جهل حماقت‌دی پيدا کيږی . اجهل احمق‌هغه‌دی چه گرفتار په دواړه مرضه دی ،جاهل هغه وته‌وايی چه‌لار ترمقصود لوړويني . احمق هغه چه عکس د مقصود،مقصود گنی.جاهل‌بياپه‌خورنگه دی يو داچه دزده کولو په سود په‌زيان نه پوهيږی چه د انسان کمال په څه کښې دی ، پيدا کړی يې څه‌لره دی ؟ دا چه پوهيږی په دا اما استاد نه لری .

بل هغه دی چه خپله نه پوهه‌ورته پوهه وی ، له ځانه خوښ وی چه پوهه هم داده چه ما څخه ده ،اما پوهه نه وی دا تر هغو دواړو بددی . ودې وته جهل مرکب وايی.هغه دوه گروهه ممکن دی چه زده‌کا. اما داچه جهل مرکب لری دا پاتی‌دی .

تفاوت دطبايع د مزاج ، حکيمانو چه منجم دی دستور ويونسبت‌اهل طبايع چه طبيبان دی - د غذا پەسبب وايی اختلاف د مزاج کيږی تبديل د اخلاقو په اتفاق ممکن دی.سړی په زده کولو سره قابل‌کيږی

نه نه زده کوی ، ناقابل پاتی شی .لکه دا ځينی صحرا نشين چه جوهر انسانی په خپل مقدار علی مرا تبهم‌په واړو سړيو کښې شته ، چه سړی دی په هغو کښې زده کول شته اکثرقابل دی ، صحرا نشين محروم دی. که لس ، شل صحرا نشين لا هلك‌په ښارونو کښې راشی بی تعليمه به‌واړه‌ښاری‌شی . که‌معلم بيا مومی‌دانشمندان به شی ، مدار په زده‌کولو دی . بيا په دا کښې تفاوت ډيردی‌څوك په لږ اشارت داستاد چه ذکی مذهن وی دانش حاصل کا ، څوك‌په ډير محنت څوك محروم پاتی‌شی.

کار جوهر ذاتی ، فطرت اصلی لرهوړغی .
ځکه واړه سړی برابر نه دی.په سړیو کښې څه چه دا حال په حیواناتو کښې دیوی مور زوی ،دیوې اسپی نتاج دیوې ځالې مرغی دیوې چرګې چرګوړی د یوې سپی کوکوری ــ کار ، کردار ، رنګ ، ترکیب . بیل ، بیل ــ دا اختلافد اووستورو یا دغذا په سبب وی . هرچه دی واړه په حکم د قادربرکمالدفاعل مختار دی څوك ددې فهمادراك وته نه رسیږی .

## مصراع

که کس نه کشود ونه کشاید این معمارا

له دې بابه ویل ډیر دی امــاکتاب طول وته ځی . بل حماقتدی له جهله سړی ګوندې په ډیر علمتربیتخلاص شی امکان ، امادحماقت نه ابوعلی غوندې سړی خلاص نهؤ.له دې رزیلت څوك خلاص نه دی .
اما حماقت هم لکه ګنا هونــهچه اوس په کښې کبیره شماری نور صغیره دی په حماقت کښې همځینې کبیره دی ځینی صغیره دی . کبیره ډیر دی صغیره خو لابې حسابهدی.سړی جهد کا چه خو ممکن وی له دې‌بلا خلاصی مومی ــ که له صغیرهحماقت خو دخلاص وی چه ځــان ایمان لره آفت دی . هرچه کبیرهدی‌یو څو به وکښم : اول حماقتدادی چه څوك خپل خدای نهپیژنی وغیروته تکیه‌کا ، لکه بت پرستی ، آتش پرستی ، پرستش دونی داصنامو یاشنګې دسپی ، دګیدړ ، دکارګه ، دهرغی وغیره دالوی حماقت دی .
بل چه دمور د پلار حق نه پهځایوی . حق تعالی جنت د مور دپلار په رضا کښې ایښی دی .

## بیت

جنت کــه رضای مادر آنست میدان که رضای مادر آن‌است

د حقیقت خدای هغه دی چــهآفریدګار ، دمجازی خدای پلار دی او مور چه وجود دده ورځنی موجــودشوی دی چه دا حق نه پیژنی هغه به هم لوی احمق وی .

بله عورته چه دخپل میړه پــه‌کار په خدمت کښې لته ، کاهله‌وی، ددین ددنیا مراد مقصود ددې دمیړه‌په رضا مندی کښې ، ددې دژوندون برکت ، عزت واړه په میړه کښې .څو حقونه پیوندونه تر میانه چه په دانه پوهیږی عظیم حماقت دی . بل‌چاکرچه سالها د صاحب نمک‌خوری ناسپاس ناحق شناس شی ، دصاحب‌په‌قهر په اعتراض جدایی وکا دا هم بدحماقت دی . بل شاگرد چه‌داستادوحق‌ته شاکا ، ورسره په‌بحث‌مجادله پاځی . بل چه دزورور ، شکوه ،شکایت وایې . بل چه چا خبره‌تمامه کړی نه وی دی تر منځ ګډ شی . بل‌چه په زوړ والی ځوانه جل په واده راوړی . بل چه دولت نه لری ډیرې‌عورتی کا ، یوه عورته تیره تمامه‌ده، دولتمند لره هم ، پاتی بی دولت‌لره‌هغه چه وایې :

**بیت**

زن نو کن ای دوست هر نوبهار　　که تقویم پارینه نه آید به کـــار

هغه غلطه ده د هرچا په ځای‌چون دی . تقویم پارینه مراد کونده ده ، نوبهار جل ، یوه ښه محبوبه‌دځنو دوربل چــه ښه موافقــه وی ډیره ښه وی ، دښځو دآسونو یــومثال دی که ډیر آسونه وی ځوان ، چه ساتنه یې نه وی په کار نه‌دی.که یو آس وی زوړ ، چه ښه ساته شی په هره سواری په کار وی .تر پنځوسو کلو عورتینه په ځوانــه شمارلی ده ، تراویا کاله پورې مردکړلی نه دی . دادحکمت دکتابو نقل دی . هغه چه وایې :

**مصراع**

زن‌را حدچهارده تابیست سالگی　　نظاره کن تمام که نظاره‌کرده‌است

داخبرې د هوسناکی دی ، دعلم د حکمت نه دی . بل هغه چه په رسم په عادت پیری ، مریدی کا .اول مرتبه دسلوك قطع عوایق دی . هر تعلق چه لری له ځان یې واچوی،په صفت د اصحاب صفه شی ، چه اول هدایت یې دادی نهایت یې خودمرید ، د پیر په تلقین په ارشادشی. تصفیه ، تزکیه لری لکه علم ظاهری‌زده کیږی ، هسې علم باطنی چــه سلوك وی زده کیږی . چه دارنګ‌نه وی ، بازی ټګی ده . احمق به هغه

وِی چه په باطل به نه پوهیږی . خیرخیرات په هرچا روغ دی چه مسلمان وی بلکه جاندار وی .

**بیت**

حورش ده ، به گنجشکك و کبك و حمام
که ناگـه بیفتـد همـای بـه دام

اما پیری مریدی دشوار امردی .که مـرید یی صا حب جذ بـه وی چه تر دنیا و ما فیها تیر شوی وی،هاله د هرچا حدیث بویه .

**بیت**

که در بند سگی بودن درین راه — به از حکیمی که راند نفس بدخواه

مریدی خو دقرآن بویه .

**بیت**

اول وآخر قرآن زچه (ب)آمدوسین — یعنی اندر ره دین رهبر توقرآن بس

بل هغه چه دا هسی گران مایه عمر په غفلت تیروی ، ورځ په ورځ ځه نه زده کوی .

**قطعه**

هریك نفس زعمر که میرود گوهریست
کان راخـراج ملـك دو عـالـم بود بـها
مپسند کین خزانه رود رایگان بـه بـاد
وانکه روی بـه خـاك تهی دست بینـوا

بل هغه چه بد ورور عز یز ،ځوك ورور عزیز گنهی .
برادر که دربند خویش است،نه برادر نه خویش است .

**بیت**

ورور چـه حـق شنـا س — نـه هغه چـه نا سپا س

بل هغه چه د ملوکانو په مهر،مینه مغرور شی . په دا طایفه هیڅ باور نشته .

گه به سلامی برنجند ، و گه به‌دشنامی خلعت بخشنند .

هغه به احمق وی چه پرې‌گستاخ شی . المخلصون علی خطر عظیم .

**بیت**

نزدیکان را بیش بود حیرانی کیشان ، کیشان سیاست سلطانی
مثال بادشاه چون آتش آمد به طبع آتش همیشه سرکش آمد
اگر باز ور فیل و طبع شیری مکن با آتش سوزان دلیری

بل هغه چه په ذاتی غلیم‌اعتبارکا . بل هغه چه اغلامی اولوطی وی. فاعل او مفعول دواړه سره دسودی.بل هغه چه د هلکانو په قهر ، قهر کا . بل هغه چه عا شق شی ،د معشوقې ناز نه وړی . بل هغه‌چه له یاره قرض غواړی . بل هغه چه‌سپینه ږیره په خضاب تور وی .

**قطعه**

ابلهی کو میکندریش سفید خودسیاه
از پی‌پیری جوانی را همی دارد امید
پیش دا نا یان که در بند شکاردولت اند
کی دهد زاغ سیاه را رونق باز سفید

بل هغه چه مځکه د باغ لری ،ورباندی باغ نه کا ــ بل هغه چه زر دسودالری سوداگری نه کا .

**بیت**

شنیدم که اندر سزای سپنج که زر ، زرکشد عاقبت‌گنج‌گنج

بل هغه چه د خپلی عورتې ویل‌وبل ته کا . بل هغه چه د طبیبا نو داروبی ویاره خوری .بل هغه چه‌په مجلس کښې ډیر خاندی . بل‌هغه چه د خمرو مستی لویی گنی . بل‌هغه چه د دخول په کار کښې افراط کاندی . بل هغه چه جلق وهی . بل‌هغه چه علم یې نه وی ویل دشعرکا. بل هغه چه ملك په میراث غواړی .

**بيت**

ملك به ميراث نه گيرد كسى  تا نزند تيغ دو دستى بسى
بل هغه چه دپلار دنيكه په نام‌په لويې ، لويي غواړي هنريې نه‌وى.

**بيت**

گرد نام پدر ، چه ميگــردى  پدر خويش شو اگــر مــردى
بل هغه چه ددنيا مال لرى په‌كښې عيش‌و عشرت نه كا . بل‌هغه چه لور لويه لرى ژريي واده نه‌كا .بل هغه چه د نن كار وگانده و ته پريږدي . بل هغه چه تربيت دكم‌ذات دكم اصل كا . بل هغه چه لاپى دخپلو وركړو ، دخپلې ميرانې كا .بل هغه چه حاصل يي لږ وى خرڅونه ډير كاندى .

**بيت**

بر احوال آنكس ببايد گريست  كه دخلش بود نوزده‌و خرج‌بيست
بل هغه مشر ورور چه كشـرورورېي قابل وى ، پرې خوښى‌نه‌كا. بل كشر ورور كه هر څو قابل وى‌مشر ورور به‌لكه پلارهسى نه‌شمارى ادب ، قاعده به يى په ځاى نه لرى.بل هغه پلار چه زوى به يى فاضل‌وى دى به ورځنى نه زده كوى . قال‌الله‌تعالى (يخرج‌الحى من‌الميت ويخرج الميت من‌الحى . ) بزرگى به عقل‌است نه به سال ، توانگرى بدل‌است نه به مال .

بل هغه چه له نادانې معشوقې‌ناز غواړى ـ داومى ولې پوست نه خيژى . كه خوږه ميوه لرى خويى‌پخه لرى ـ هغـه دنـيازه نياز چـار ، د نشاط د انبساط كارونه لكه پخوازده‌ؤ اوپه خوب موليدلـى نه دى ـ دپخته تركاره نه رسيږى خام ، په‌داخبره بويه اختتام ـ بل هغه چه دزوروورو غليم مخى لـره ورځى يـاورپسى زغلى . بل هغه چه غليم يې مېتري ستومانه په ملك پريـملى ،ورسره زر جنگ نه كا ، وغليم ته دمه وركا . بل هغه چه له بداصلى‌ښځې وفا غواړى ـ بل هـغه چـه خيښى له ناجنس كا .

**بيت**

کند هم جنس با هم جنس پرواز　　کبوتر بـا کبوتـر باز با بـاز

پښتون له پښتنه ، مغل له مغله، کفوله کـفو ـ بل هغه چه توان يی رسيږی د محتاج مقصود نه کا .

**بيت**

کار درويش مستمند بـر آر　　که ترا نيز کـار هـا باشد

دا يو څو مهلك حماقته وشماره شول چه کبيره دی لانور ډير دی چه په دا وپوهيږی په نورو بـه هـم وپوهيږی . که نه په نورو به څـه پوهيږی الله ولی التوفيق .

سوال له مطالعه کنندگانو داچه ځينی جامی په نقش ونگار کښبيده کړی اغوښتی ځينی ساده اغوښتی شی . به يی تـر کښبيده کړی وی . کتابونه را څخه نهؤ ، او که نه ښی تکی می به په دا کتاب کړی وې ، نظم ، نثر ، عربی ، فارسی می به په اشتهاد په کښې ډير راوړی وو . اما په عنديات په حافظه خو به داهومره څه کيده ، ادراك به هومره رسيده ـ هره خبره به له روايته بيرونه نه وی ، له حکمته به خارجه نه وی. واړه به هغه څه وی چه ددين د دنيافوايد مقاصد په کښې وی . سراسر جمله دقابليت په علم رساله ده ،عين مطلب می په دا حبس کښې دفهم دغلطيدوؤ ـ په دا حادثه کښې که محروم ؤ خو قلمؤ . په دا التيام دقلم

حکمؤ ، دی حکم ؤ ، چه اتمام التيام يې وشو ، تر عين مطلب چه ؤ ، دا فهم راته جلوه گر شو . چه دهغو فرزندانو ، برادرانو ، دوستانو ، يارانو چه تربيت په خاطرؤ ، تربيت وصيت به ورته په خاطر کيده . لکه فلك کج رفتار ، تقلب دليل ونهار،دا تفرقه تر ميان واچوله تا پاك به شمارکی ډير شی . که دا سودا ترديو ورسيږی چه داگوری پرې ناظر وعامل وی ، داهم د عين مطلب سره شمارلی مطلب دی .

په حکم ددې خبرچه المکتوبا ت نصف الملا قات دامختصر په دادا عيه، لاحق تعالی دې توان توفيق ورکـاتوفيق دې رفيق شی . که چيری سوی

خطاء په کښې واقــع وی نظـردېداصلاح پرې وکا . په اغماض دې نذئی وکا ( خذ ما صفادع ماکدر )دانایان د طعن ژبه کوتاه لری ، چه عین مطلب خو د ظاهر ښه ګنه ـ پهعدم استعداد و استطاعت دا داعیـه په خاطر نه وه بدایت یې په چهارشنبه شروعؤ نهایت یې په اولسم دربیعالاول وشو . داقطعه د تاریخ ده :

**قطعه**

دا کتاب چـه پـه پښتو خوشحالانشاء کړ
پـخـوانـه دی انشـاء کـړی پښتانـه
که تاریخ یـې د انشاء لـه مانـهغواړې
وایـم دابـس دی مـحنـت د بـیلتا نـه

---

به تاریخ پنجم جمادیالثانی ،سنه ۱۱۱۹ یکهزارو یکصدو نوزده ، در سر کار زبدهٔ خوانین بلند مکان،خان مکرمت نشان مرجـع حسنات حسنه ، منبع افاضات ذاتیه محمد افضل خان جیودامالله ارشاده و ضاعف آثار اقباله ـ نسخهٔ معظمـهٔدستار نامه به خط احقر عبدالحلیماز حوصلهٔ قلم به منصهٔ تحریر در آمد.



دخوشحال ختټک قبر چه په ۱۳۲۷ش ، هکال دپښتوټولنې
له خوا دکابل دحجارۍ اوانجارۍ په فابریکه کښې
جوړ شوی دی .

# لومړۍ برخه

## د دستار نامې د ځینو لغاتو شیړنه

ددوست محمد (کامل مومند) تحلیل:

دالف ردیف:

احب التوبة الخ: (دځوانی توبه دخدای له قولوزیاته خوښه ده)

ارث: (میرات).

اعتاق: (ازادول).

افضل الاعمال واجب الخ: (په اعما لو کښې ښه او خوښ دخدای په نزد په خدای ایمان دی بیا د خپلوۍ خیال، بیا دښو نصیحت او تبلیغ کول او له بدو منعه کول. او دخدای په نزد دقولو نه بد او دهغه بدی شوی عملونه هغه سره شریك کول، بیا د خپلوۍ خیال نه سا تل او بیا ترك کول دښو د تبلیغ او د بدو نه نه منعه کول دی.)

اقتلوا المشرکین کافه: (قول مشرکان قتل کړی ه).

اکرم الضیف الخ: (د میلمه که کافر هم وی عزت کوی ه).

الایام الخ: (ورځی دخدای ورځی او بندیان دخدای بندیان دی.)

التیام: (برهاره کیدل، جوړیدل، علاج، تدبیر، بندو بست، کار.)

الجنة تحت الخ: (جنت دتورو دسیورو لاندی دی)

الراعی لعباد الله الخ: (دخدای د بندگانو شپون معنا فظ حاکم او دخدای دملکو نو حمایت کوونکی).

الرجال قوامون الخ: (سړو ته په ښځو فوقیت حاصل دی لکه چه الله تعالی ځینو له په ځینو فضیلت ورکړی دی.)

السعید الخ: (نیکبخت او بدبخت دمور په ګیډه کښې وی.)

الشربات: (دڅښلو څیزونه)

الطیبات الخ: (پاکی د پاکو او پلیتی د پلیتو د پاره ده.)

**العدل ساعة الخ:** ( د یو ساعت عدل د شپیتو کلو د عبادت نه چه دشپې لمونځو نه او د ورځې روژې وي ښه دی. )

**العلم علمان:** ( علمونه دوه دي: یو د بدن او بل د دین علم یعنې طب ډاکټري او دینیات دادوه دڅو لو نه اهم علمونه دي. )

**آلیټه:** ( پریشان لیونی. )

**الکریم اذا وعد وفا:** ( عزتمند سړی چه وعده وکړی نو پوره کوی یې. )

**اللهم جنب الخ:** ( یعنې ای الله زما او ښځې نه شیطان په ډډه کړی او ای الله زه تا نه سوال کوم دهغې دخیر او پناه غواړم د هغې له شره یعنې نه دی هغې ته بدرسی او نه دی دهغې په سبب ماته بدرسی. )

**الملك یبقی الخ:** ( پادشاه د کفر سره پاتې کیدی شي خو نه دظلمه سره )

**الوالی اذا کان الخ:** ( والی، حاکم، بیا د شاه چه انصاف کوونکی وي نو درحمن خلیفه وي او چه ظالم وي نو دشیطان خلیفه وي )

**انا حبیب الله الخ:** ( زه د خدای حبیب یم او ځوان تو به گار دخدای حبیب دی. )

**ان الله یبغض الخ:** ( دالله تعالی د پایلو اواز بدی شي لکه چه یې موسیقی بدې شي، پایله پې له ملعونی بل څوك نه اچوی یعنې د رقص او سرود د پاره یې اچول بد دی )

**ان للشاب الخ:** ( ځوان تو به گر د پاره د خدای له طرفه لوی اجر دی. )

**انانیت:** ( خودی، غرور، دځپل ځان په شان بل څوك نه لیدل. )

**اوتاك:** ( اطاق، کمره، کوټه )

**انا ولدت فی زمن الملك العادل:** ( زه د عادل پادشاه په زمانه کښې زیږیدلی یم )

نوشیروان دایران یو عادل بادشاه ؤ، او د حضور رسول اکرم (ص) ولادت باسعادت دهغه په زمانه کښې شوی ؤ خو چه څه پوری د دی حدیث او ددی قسم د نورو حدیثو نو تعلق دی بالکل ضعیف دی او هغه اشعار هم چه خان په دستار نامه کښې دفارسی ادب نه نقل کړی دی او له دې نه

دومبي تاسي لوستي دي او دغسي نور اشعار هم هيڅ اصل او بنياد نه لري (۱)

**اولكه:** (ملك ، علاقه.)

**ايغر:** (ساتنه )

**اسد:** (امرداد) دجولايي ۲۴–اګست ۲۳

**د«ب» رديف:**

**بهذا يمدد كم الخ:**«الايه»: (ستاسي رب ستاسي مدد كړي په پنځوزرو نښاندارو فرښتوسره. )

**اى معممين الخ:** تفسير (ترجمه دايت: نښاندار. كوونكي دي بټكي خپل په داشان چه څوړند كړي يي دي شملې ددي بټكو په منځ د خپلو اوږو.)

**بهله دوزي:** (بهله ګنډل ، بهله دخرمني هغه دستانې ته وايي چه ښكاريان «ښكاري مرغان ساتونكي» يي اچوي )

**برګستان:** (برګستران) لاندې لغظ وګورئ : كيجم (ياكجين) زغري چه د جنګ په ورځ آس ته اچوي چه برګستان ورته هم وايي.)

**بهايم:** (څلور پښي)

**بندګر:** (تخم لرونكي ، اچوونكي ، زميندار ، باغوان)

**بطناً في البطن:** (بښت په بښت.)

**د«پ» رديف:**

**پاره:** (څه قدري).

**پيخال:** (د مرغانو غل )

**پختن:** (بخول.)

**په مبالغه واقع شويدي:** (مبالغه په عربي كښي هغه معنى نه لري چه كومه په فارسي ، اردو ، پښتو وغيره كښي لري په دي ژبو كښي په بيان كښي د حقيقت خلاف ورزي ته وايي. (۲)

---

(۱) داخبره مبالغه ده ددستار نامې زيات پارسي اشعار د پارسي ادب په كتابونو كښي شته او بي بنياده نه دي.

(۲) عربي كښي د يو څيز كثرت بيانولو او په كلام كښي زور اچولو ته مبالغه وايي دلته د مبالغې لفظ په همدې معنو كښي استعمال شوی دی چه كوم څيزته مونږ مبالغه وايو په عربي كښي هغوته اغراق ويلی شي.

د «ت» ردیف:

تیرصودیارلس: (د ی سوه دیار لس.)

تکلم الناس الخ: (خلکو سره په اندازه د هغوی د پوهې خبری کوئ)

تزکیه: (پاکول.)

تصفیه: (صفا کول.)

تریناك: (زوړ.)

تله: (میزان.)

تملق: (خوشامنده، چاپلوسی )

تزوجوا الخ: (د دواړو حدیثو نو مطلب دا دی چه عیسا یانو در هبانانو ( تارك الدنیا ملایانو) په شان مه کیږئ ښځې کوئ او اولاد پیدا کوئ چه د قیامت په ورځ زه د خپل امت په ډیروالی فخر کو لکه چه په پښتو کښې هم مطلب بیان شو.)

تذهیب: (سرو زرو کار ، نقش )

تصدیع: (سر خوږول ، تکلیف )

تحت الثری: (دمزکی و بیخ ، تل )

تأنی: (تأمل.)

د «ث» ردیف:

ثور: (اردی بهشت) د اپریل ۲۱ – د می ۲۱

د «ج» ردیف:

جرده: (تور )

جوزا: (خور داد) ۲۲ می – ۲۲ جون

جدی: (دی) ۲۳ دسمبر ۲۰ جنوری

جبلی: (په خټه اپښخلی.)

جعفری: ( د پر زیات خالص زیږ.)

د « چ » ردیف :
چه رواج پری کیږی : ( چه ترقی بری کیږی . )
چوز : (حوان . )
د « ځ » ردیف :
ځبلمه : ( بوتربله ، مخلوط ، ګډ ، ملاو . )

د «ح» ردیف:
حشم : (دبدبه او شوکت)
حبه : (بشری ، دانه، ډیر لږ مقدار)
حلوان : (دچیلی یاګډی بچی ، ورغمی یاوری )
حمل : (فروردین) ۲۱ - ۲۲ مارچ ۲۰ اپریل
حوت : (اسفندارمند) ۲۰ فروری ۲۰-۲۱ مارچ
حنات : (. .)
حب الدنیا رأس کل خطیئة : (ددنیا مینه دټولو بدوسردی.)
د«خ» ردیف :
خصلت دخاموشه : ( خاموشی )
خدم: (نوکر ، چاکر )
خمسوری: (بی حیایی، سپکوالی)
خذما صفا ،دع ما کدر : (ښه واخلی او بد پریږدی )
د«د» ردیف:
دیار (ملك ،مملکت.)
دخپل نوازش شرم : ( ددی خبری خیال ساتل چه مهربانی بی ځا یه و لاړه نه شی )
درسته : دخان به کلام نظم او نثر کښی دا اکثر را ځی تر کش ( دغشو تیکی ) ته وایی ځینی قبیلی بی دټو بك او مطلقی اصلحی به معنو هم استعمالوی .
درودګر : (ترکان.)

**دلو :** (بهمن ) ۲۱ جنوری ۱۹ فروری

**دریځ :** (اوچت ځای دودربدو لکه دوکانچه وغیره ، منبر ته هم وایی) .

**دوبه:** (دهوبی ، د هو بڼه )

**د«ذ» ردیف :**

**ذره:** (بخری ، دانه ږیرلې مقدار )

**ذالك فضل الله یوتیه من یشاء (آیة )** ( دا د خدای تعالی فضل دی چه چاته یې خوښه وی و رکوی یې )

**د « ر» ردیف :**

**رشد :** (هدایت )

**رودی :** (کولمی ، احشاء هغه څه چه سینه او خیټه کښې دی لکه زړه ، ځیګر ، معده کولمی وغیره .)

**ایمیا :** (هغه علم دی چه د هغه په زور به بوه لحظه کښې سړی بوځای ته ورسی .)

**ربوبیت :** (صفت، شان، درب )

**رښتن :** (وریښل)

**رباط :**(سرای )

**رکیکه :** (سپکه ، بی عزته، له حیا تشه)

**د« ز » ردیف :**

**زادا وراحله:** (زاد دسفر خرڅ اوخوراك . را حله دسو رلی ځلور بول )

**زریات:** (اولاد)

**د « س » ردیف :**

**سمك :** (کب،مهی هغه کب چه( زمکی په و یخ کښې دی او زمکه پری حصاره ده )

سیمیا: (جادو طلسم دجادو به زور موهوم څیز ونه چه وجود نه لری ښکاره کول.)
ستوده ، ناستوده: (قابل تعریف ناقابل تعریف )
سهم: (غشی ، تیر)
سنبله: (شهریور) ۲٤ اگست ۲۲ سنبله
سویت: (برابری)
سباع: (درندګان لکه مزری پړانګ لیوه)
سفره: (دستر خوان)
سوبه: (فتح ، کامیابی)
سواحنه: (سوی)
سویه نګاه: (بد نظر)
د «ش» ردیف:
شیوه او نمائی: (نمود ، نمایش ، نیل ، ډیل ، ډول)
شریری: (شوریږی ، خوزی ، حرکت کوی ، ګرځی)
شرنګک: (سور)
شوزه: (ډیر خطرناک ) له غصی نه ډک مزری ، پړانګ
شمول: (دالفظ شمال ښکاری یعنی هغه بوټخکی چه ونی دمیوی دحفاظت دپاره اچوی.)
شمول : (هغه شرابوته هم وایی چه به بادشمال یخ شوی وی )
شلق: (شلاق) په‌سر بلاس وهل دلرګی ګذار سرزنش
د «ښ» ردیف:
ښاغلی: (مرد ، بهادر ، باهمت)
د«ص» ردیف:
صیانت : (نګامیانی ، حفاظت)
صلابت : (کلکوالی مضبوطوالی)

د «ط» ردیف :

طرفة العین : (د سترگو رپ ، ځنبل)
طماغه : (د باز ټوپی ، د سرخول)

د «ع» ردیف :

عنا : (رنځ ، مشقت ، درد ، تکلیف)

علم لدنی : (هغه علم چه بیزده کړې دخدای تعالی له طرفه عطا شوی وی )

عاطل : (بی کار)
عبدالزوجه : (د ښځی غلام ، زن مرید )
عقیمه : (شنډه)

علوفه : (تنخواه ، مزدوری ، گزاره )

عقرب : (ابان) ۲۴ اکتوبر ۲۲ نومبر
د «ع» ردیف :

غوولی : ( نامرد ، بزدل ، پست همت )

غندنه : (مذمت او ملامت کول)
غلات : ( غلی ، دانی)

د «ف» ردیف :
فراقنامه : د خان علیبن مکان دمحینو حبسیاتو ( دقید دزمانی د نظمونو) مجموعه چه غزلی او مثنوی لری .
فواکهات : (میوی )

فتوت : (ځوانمردی ، مروت ښه ځوانتوب )

د «ق» : ردیف

قوام : د ټینگوالی
قوس : (آزر) ۲۳ نومبر ۲۲ دسمبر

د «ك» ردیف
کولکونه : ( کویلك ) قمیص (پرری)

کیمیا : ( دسروزرو دجوړولو علم او هنر او قلعی، ومس په زرو او سپینو کښی بدلول )

**کل حزب الخ (آیة):** هر یوه ډله په خپلو خپلو خیالاتو سره خوښه ده.
**گفتار:** (کوبه چه د شرمیښ غوندی یو درنده دی)
**کل شی یرجع الخ:** (هر یو څیز خپل اصل و ته رجوع کوی.)
**کجیم یا کجین:** (زغری چه د جنگ په ورځ آس ته اچوی چه برگستوان ورته هم وایی)
**کرمنا بنی آدم الخ (ایة):** (مونږ بنیادم معزز کړل، تحقیق الله تعالی برگزیده کړ ادم (ع) او نوح (ع) او آل ابراهیم (ع) او آل د عمران ئې عالمینو یعنی په عالمینو کښې یې منتخب کړل او پری فضیلت ورکړه.)
**کتمان:** (پټول)
**کلکم راع الخ:** (تاسو کښی هر یو ساتونکی یاست او هر یو دخپل رعیت په باب جواب ده یی)
**کاله کهاله:** (خاندان، کورنی)
**د «ل» ردیف:**
**لیس منا الخ:** (هغه له مونږ نه دی چه مشابهت یې وکړ وزمونږ نه غیرو خلکو سره.)
**لکه ستر گی دچادسوادوشی:** (لکه چه د چا سترگی تورو (لفاظو) سره اشنا شی.)
**لوث:** (آلودگی، پلیتی.)
**لابد:** (ضرور، لازمی)
**لونه:** (رنگه، قسمه)
**لا تقنطوا من رحمةالله (ایة:)** (د خدای تعالی د فضل نه نا امیده کیږی مه.)
**د «م» ردیف :**
**موجزه:** (مختصره، لنډه، وډه)
**متحلی:** (حیله کړی شوی، زیوراچولی شوی اراسته.)

**مضغه:** (دغوښې ټوټه يې ، بلې .)

**مبرم:** (محکم ، استوار .)

**مظنه:** ( شک ، گومان .)

**مزرعه:** دځای دزراعت ، کر ، پټی .)

**مباهات:** (فخر)

**مقنع:** ( . . )

**مبنته:** (استو ګنه ، رهايش .)

**ماکولات:** (دخوراك څیزونه )

**ملبوسات:** (په تن داچولو څیز ونه جامې وغیره )

**مسکنات:** (کور ، ځای ، ځايګی )

**مشود يامښود:** (کو ښښ)

**مطائبه:** (ټو که ټکاله)

**مغلوك:** (فلك وهلی .)

**من بلغ اربعين الخ:** (څوك چه څلو ېښتو کلو ته ورسی او دهغه ښه په بدو غالب نه وی نواورددوزخ ته به ځی)

**مالك الملك ملك الملوك:** (د ملك څښتن د بادشاها نو بادشاه دی)

**مهابت:** (هیبت ، دبدبه ، رعب.)

**مبتدع؛** (بدعتی ، دين کښې نوی کار او خلل اچو ونکی .)

**متمرد:** (سر کش بغاوت )

**میزان:** (مهر ) ۲۳ ستمبر ۲۳ اکتوبر.

**د «ن» :ردیف .**

**نتاج :** (زیږ بدلی ، زوزاد)

**نفاس:** (نه سپړی ، نه بنیادم)

**نکبت :** (رنځ ، تکلیف ، مصیبت )

**نیران:** (اور جمع د نار.)

**نسأ کم حرث لکم :** (آیه ) (ښځې ستاسو پټی دی )

**نفقه** : (خرڅ خوراك)
**نشوز** : (د ښځې او خاوند ناچاقي.)
**نسق** : (ترتيب ، انتظام)
**د«و» : رديف ·**
**ويله** : (يو تربله)
**والسلام على الخ** :(سلام دې وي په هغه چه د هدايت پيروي وكړه)
**وماعلمناه الخ** : (الله تعالى د رسول اكرم (ص) په شان كښې وايي چه مونږ هغه ته شعر نه دی ښودلی او نه دا د هغه د شان سره ښايي)
**ورچاني** :(بهر)
**وابتغ بين ذلك سبيلا الخ** : (په دې كښې منځنۍ لاره خوښه كړې.)
**وپيري** : (په بيعه واخلی)
**ونمانځي** :(نمانځل عزت كول ته او درجې او مرتبې زياتول ته وايي . نوري معناوي هم لري . لكه لويي او ثنا بيا نول او د هغو اعتراف كول خو هغه معنی د ئته تعلق نه لري.
**ووانات** :(ځانداران)
**وصي** : (چه د چا په حق كښې وصيت شوی وي)
**والكاظمين الخ (اية)** : (قهر زغمونكي (ضبط كوونكي) او خلك معاف كوونكي .)
**د«ی» : رديف ·**
**يوز** :(پړانګ)
**يمن** (بركت) ·
**يا يها الذين امنو الخ «اية»** : (ای هغه كسانو چه ايمان مو راوړی دی خپل ځانونه او بال بچ له اور ه وساتئ ·)
**يخرج الحي** : (له ژوندو مړی و باسی او له مړو ژوندی و باسی يعنی ژوندی مړی كوی او مړی ژوندی كوی)

# دوهمه برخه

## دلغاتو د شانگې پلټنه

د الف ر د یف

ایغر : (سانډه، مست)

الپټه: (وارخطا پریشان)

اشاړی بادام: (ځنګلی بادام)

اوتاك: (اطاق، خونه)

اغلامی: ( . . )

اهوری: (اوری)

د «ب»: ردیف،

بادخوری: (د آس د یوې ناروغی نوم دی)

بد پشمی : ( . . )

بیړندی: (تلوار کوونکی)

بقاول: (بخاول)

بد فتین: ( . . )

بودری خور: (خطر لیدونکی)

بیسره: (یو ښکاری مرغه دی)

باریه: (د باښې له کورنه یو قسم ښکاری مرغه)

بچیری: (دمږ زیو قسم)

باولیه: (د باز د آموخته کولو مرغه چه وزرونه یې ویستل شوي وي)

بزه کاری: (ګناهکاری شرمندګی)

بادله خیره: ( . . )

بلیږدی. (نغاړی، تاوی)

د «پ» ردیف

پاسو : (کمینه، بداصل، کم ذات)

پترماری : ( . . . . . . )

پرکوټ : (وزربری کمړی مرغه)

پیخال : (دمرغانو گندگی)

پرمهر : (دښکاری مرغانو خاص خوراك)

پیشنگ : ( . . . . . . . . . )

پریملی : ( . . . . . . . . . )

د(ت)ردیف :

تږو : (تو)

تږمتی : (بوښکاری مرغه)

تروپ‌ه‌ی : (گیدړه)

توری والی : (تورخوډنه)

تیغون : (سپین باز)

د (ج، چ، څ)ردیف

جوپه‌یدلی : (تیناز شوی)

جهاگك : (زگك)

جره باز : (دبازیوقسم ته‌وایی)

جرده‌اس : (تورا س .)

جیبه : ( . . . . . . . . )

چوټ : (زخم).

چرغ : (بوښکاری مرغه‌دی)

چاکل : ( . . . . . . . . . )

چهی : ( . . . . . . . . . )

څروی : ( . . . . . . . . )

د(خ ـ ځ) ردیف

خر پشي: - (۰۰۰.)

خنګ: (سپین اسپ)

ځاړی: - (یو مرغی دی)

د(د) ردیف

در سته: (دغشو تیکی)

در ستن: - (ښیګڼه، نیکی)

دلبه: (د ښکاری مرغانو د آموختیه کولو غوښه)

دګی: (هغه غو ښه او غټ لرګی چه غوښه قصابان پری میده کوی)

دومی: (د مرغانو یو مرض ـ سیاره)

دمهو ډ ی: (۰۰ ۰۰)

درودګر: (آهنګر، ترکاڼ، نجار)

د(ر)- ردیف

رنځړی: (رنځور غالدی)

راتبخور: «۰۰۰۰»

د(س) ر دیف:

سرویل: (کم قیمته فلزات)

سوایی خور: (سود خور)

سند: (اتفاق)

سرنګ: (سرنج، نغاره، ډول یا سوی قلمی او سرب)

سرخنګ: (۰۰۰۰)

سوریته: (وینځه)

سنجاب: (یو حیوان چه قیمتی څرمن لری)

سرپای: (۰۰۰۰)

سیخ پای: (۰۰۰)

سیسی: (دزرکی پەشان مرغە دی)
سیس : (بی ارزشە فلزێ دی)
سهل: (ز فمل)
د«بش» ردیف :
بشگتا : (....)
د(ش) ردیف:
شولان: (کمند)
شیکرە: (پوشکاری مرغە)
شنقار : (دشیند لەکورتی پوشکاری مرغە)
شنگپ: (....)
شولی: (.....)
د(ع) ردیف:
عزازیل: (ابلیس)
د(ق) ردیف:
قدید:«ع» (وچەغوشە)
قزاقی:«ت» (ڵاکەاچول دالەە اچول)
د(ک؛گ) ردیف:
کرشنە: (دلەولار)
کوڵی:(دپەمریض)
کانا: (کولە سترگی)
کیجم :(....)
کنجغری : (....)
گور گورە: (دغرە پوە میوە دە)
گاوز: (غرنی حیوان)




د (ل )ر دیف :

لنګړ : (پوښکاری مرغه دی )

لنګرۍ : (د شیری ویستلو لوښی)

لام : (زغره )

د(م، ن)ردیف:

مختورګی : (مختوری)

ملغولی : (دخوراك یو شی دی)

موتره : (۰ ۰ ۰ ۰ )

ناغه : (قضا )

نهمت : (ع) آرزو اوحرص )

نرکوهلی: (۰ ۰ ۰ ۰ ۰)

د(و)ر دیف :

ویار : (عیب ، نقص)

وهاری : (۰ ۰ ۰ ۰ )

وپراګی : (۰ ۰ ۰ ۰ ۰)

وهندی : (وهونکی )

د(ه)ردیف:

هنګوناس : ( ۰ ۰ ۰ ۰ ۰)

هلم: (د تره تیزك تخم).

هاروڼ : ( ۰ ۰ ۰ ۰ )

هرت پرت : (خوشی )

هنګی : ( دخره آواز ).

د(ی) ردیف:

یوز : (پړانګ).

# فهرست

# DESTAAR NAAMA

## DE

## KHOSHHAAL KHAN KHATAK

PASHTO TOLANA

1966

دولتی مطبعه